# څرک

اتم کال یولسمه ګڼه –پرلپسې ۷۵ ګڼه –سرطان اسد ۱۳۹۳ل، شعبان۱٤۳٤ق جون۲۰۱۳م




## سپین بیرغ بیا په رپیدو شو

## اهل سنت والجماعت یا ناجیه فرقه!




## دقطر دفتر هیلې او ننګونې!

## انسانانو ته تر ټولو خطرناکه نشه اوپر ضدیې

## دامریکا لخوا دانټرنیټي او تیلفوني اړیکو څار !!

## ابعادیک رسوایي

## ستاسو په کلي کې دامریکایې عسکرو پښه ورکه ده !!؟

# ځرک

**علمي ، فرهنګي ، ټولنیزه اسلامي خپرونه**

اتم کال یولسمه ګڼه - پرلپسې 75 ګڼه - سرطان - اسد 1393ل ، شعبان1434ق-جون2013م

## امتیاز :

دامتیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل میړنی او افضل محمد تراب

## ګډون :

افغانستان : 180 افغانۍ

پاکستان : 240 کلدارې

امریکا : 60 ډالره

اروپا : 60 یورو

یوه ګڼه : 15 افغانۍ

25 کلدارې


## یادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقا لې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.


## پته :

کابل : د ځرک دفتر

srak_111@yahoo.com

تخنیکي چارې : عابد مجاهد


## سرلیک

سرمقاله

# سپین بیرغ بیا په رپېدو شو

تاسو به له مطبوعاتو څخه اوریدلي وي، چې په قطر کې داسلامي امارت خپل دفتر خلاص کړ او د دفتر په انګړ کې یې په رسمي توګه خپل سپین بیرغ چې کلمه پرې لیکلې پورته کړو. که څه هم بظاهر د بیرغ پورته کیدل، یا د دفتر خلاصیدل څه اهمه خبره نه ده، هر چیرته داسې کارونه ترسره کیږي، خو د سپین بیرغ پورته کول بیا ګڼ مهم ټکې لري، هغه داسې چې دښمن د همدې بیرغ د ښکته کولو لپاره د دنیا له ګوټ ګوټ نه فوځونه را ټول کړل، تر څو همدا بیرغ ددوی په اټکل سرنګون کړي، دوی طالبانو ته په هیڅ بشري ارزښت قائل نه و، له مرګ څخه پرته یې ورته بل علاج نه در لود، په خپله اراده کې په موقته توګه کامیاب هم شوو، په ټول هیواد کې سپین بیرغونه ښکته کړل شول، ځای یې د امریکا د لاسپوڅو او متحدینو بیرغونو ونیو.

د دوه زره یو کال خبره ده، امریکایانو اوبه خړې کړې او په افغانستان یې حمله وکړه، په افغانانو او په ځانګړي توګه په افغانانواوطالبانو یې د قیامت ورځ جوړه کړه،

د دښمن حمله سخته وه، مطبوعات یې هم په واک کې وو، شمالي ټلوالې یې هم پوره مرسته کوله، ګڼو تش په نامه جهادي ډلو هم ورته ښه راغلاست وویل، د نړۍ ټول هیوادونه ورسره ملګري و، د وخت فرعون بش اعلان وکړ، چې نړیوال هیوادونه باید یا خو له موږ سره ملګري شي او یا دې جګړې ته ځان چمتو کړي. همداسې د امریکا د دفاع وزیر اعلان وکړ، چې طالبان له مرګ څخه پرته بل علاج نه لري، ځکه خویې د جنګې په کلا کې په زرګونو طالبان شهیدان کړل. ټولو اسلامي هیوادونو ورته له ډاره سر ټیټ کړ او خپله مرسته یې ورسره اعلان کړه.

مسلمانان له سختې نا امیدۍ سره مخ شوو، ځینې تر دې حده پورې نا امیده شوو، چې په اوتو بوتو سره شوو، ځینو به ویل د طالبانو سنه ختمه شوه بیا به څوک د ملا عمر مجاهد نوم هم وانخلي، یا دا چې نړیوال طالبان بالکل نه شي زغملای، داسې کسان هم په دې اوتو بوتو کې شریک وو، چې تر یو حده پورې حساب هم پرې کیدو.

ولې د نورې نړۍ په څیر د اسلامي امارت مشرتابه له خپل اسلامي دریځ څخه په شا نشوه، په کلکه یې د مقاومت هوډ وکړ، له هر قسم مشکلاتو او قرباني سره سره یې له پنځوسو څخه زیاتو هیوادونو ته غیږ ور کړه، د هیواد مسلمان او متدینو خلکو هم د دوی مقاومت او جهاد ته ښه راغلاست وویل، هر راز مرسته یې ورسره پیل کړه، دا مقاومت نړیوالو داسې انګیرل لکه د میږتون او فیل مقابله او چندان د اهمیت په سترګه یې ورته نه کتل، ولې په دوهم کال دښمن ته ثابته شوه چې طالبان ختم شوي نه دي، او له نظره نشي غورځیدای، طالبانو خپلو غلچکي او فدایي بریدونو ته زور ورکړل چې دښمن سخت وارخطا شو، د پنځوسو هیوادونو په متحد لښکر کې شکست ګډ شو، یو یو د تېښتې لار غوره کړه، د صلیبیانو سوچ هله سرته راغی چې اوبه له ورخه تیرې وې، نو لومړی یې د خپل شکست د تور داغ پټولو له پاره مختلف قسم تبلیغات وکړل، د طالبانو په منځ کې د اختلاف اچولو کوششونه یې وکړل، پخواني مجاهدینو څخه یې د طالبانو په خلاف ګټه پورته کړه او د اربکیانو په نوم یې ملیشه را منځته کړه، خو د الله تعالی په فضل د دوی دا ټولې هڅې ناکامې شوې، نه په طالبانو برلاسي شوو، نه یې په هیواد کې امن تامین کړ، نه یې هیواد له اداري فساد څخه وژغورل او نه یې د ترقي په لوري د یادونې وړ مهم کار ترسره کړ، لنډه دا چې په هر محاذ کې له شکست سره مخ شوو، نو اخیر مجبور شو د خپل شرم پټولو په خاطر د مذاکراتو میز ته راغلو، د قطر په پلازمینه دوحه کې یې اسلامي امارت ته د دفتر د خلاصیدو اجازه ورکړه او د دیارلس کلونو له وقفې څخه وروسته یو ځل بیا سپین بیرغ په هوا کې په داسې توګه وزري ووهلې چې د ټولې نړۍ د مطبوعاتو د پام وړ وګرځیدواو ان شاء الله نزدې ده چې په ټول هیواد کې یو ځل بیا د پخوا په څیر سپین بیرغونه ورپیږي.

دا بیرغ نه د چا په ډیپلوماسي رپیدلی، نه د چا په دریم ګړیتوب، نه د چا په هوښیاري، نه د چا په سیاسي منډو ترړلو، بلکې علت د رپیدو او د دفتر خلاصیدو یواځې د امارت واضح اسلامي دریځ، د سنګر د خړو طالبانو سرښندني او د فدایانو قربانیاني او تندریز بریدونه دي.

همدې بیرغ په خپلو رپیدو سره د فیل په غوږ کې ویده اسلامي نړۍ ته پیغام ورکړ، چې له خوبه را پاڅیږئ، له کافرانو څخه ځان خلاص کړئ، له هغوی څخه د خلاصون له جهاد څخه پرته بله هیڅ لاره نشته، که جهاد مو خپل کړ، د الله لپاره مو قرباني ورکړه، نو که ټوله نړۍ مو خلاف شي بیا به هم ستاسو د کامیابي ستوری زما په شان په نړۍ کې ځلیږي او کنه د غلامۍ سرونه به مو تر ملا پورې ټیټ شي او دا چې ستاسو عزت د کافرانو په غلامۍ کې نه بلکې په جهاد او قربانۍ کې دی.

# ارګ ته د سپین بیرغ د مشروعیت او قابلیت پیغام !

خبیر احمدم

دکابل دارګ شغالانو او داریاناهوټل دسی ای اې جنایتکارانو دافکر کړی ووچې که بله هره سیمه او مرکز داسلام د سربښندونکو او هدفمندو اتلانو له لوري هدف ګرځیدای شي ، دوی او ودانی یې لدې امله مصؤنې او بې خطره دی چې له شاوخوانه دڅو امنیتي کمربندونو په توسط کلک ځارل کیږي او په غزیدلو لاروپرته له وزیرا او امریکایی جنرالانو هغه هم په هغه صورت کې چې مخصوص کمپیوټري کارډونه ورسره وي بیا سفر کولای شی؛ خو دعزم او قربانی لښکرو دغلیم داوروستی ځاله او تکتیک هم دایمان په وسله ناکاره ، ټول امنیتي خنډونه یې ځانته مسخر او تاریخي ګوزاریې سرته ورساوه .

دراپوررونوله مخې څو تنه اتلان چې په درنو وسلو، مهماتو او په خاصو تکتیکونو او مهارتونو پوښلي وو دسهار په ۶ نیمو بجو الله تعالی ورسره داعنایت وکړچې رومبی داریاناهوټل چې دامریکااستخباراتي شبکې له تیرو ۱۳ کلو نوراپه دې خوالوی مرکز دی تربریدلاندې ونیسي او دڅوچاودنو په توسط دهوټل ټولې دروازې او شیشې والوزوي او ترڅو ساعتونو پورې یې په توررولوخړوکې ایسار وساتي تاسې خپله باور وکړی چې په دغسې یو حالت او بریدکې به موجودو امریکایانو ته څومره زیان او مرګ ژوبله اوښتي وي ،اسلامي امارت ته دموثقو راپوررونو په توسط معلومه شوي چې په هوټل کې د۲۰ تنو په شاوخواکې دسی ای اې جنایتکاران وژل شوي او دوه برابره نور ټپیان شوي ، ځکه چې له پیښې ورسته ګڼو امبولانسي چورلکو له هوټل نه مړه او ټپیان دبګرام په لوریووړل

دغه راز اتلانو وکړای شول چې پرمخ ولاړشي دنورو چاودنو په زریعه دارګ دشمالي برخې دخاصې لارې مهم پلټنځای او چک پوست په بل مخ واړوي چې دمعلوماتوله مخې جګړه دومره نیږدې وه چې په ارګ کې هغوخبریالانو چې دکرزي او دامریکادخاص نماینده (جیمز دابینز) ترمنځ دکیدونکې خبري کنفرانس په هیله هلته جمع اوور بلل شوو ځینو خبریالانو دنوموړو دنه خپراوي په شرط داسلامي امارت خبري سرچینو ته ویلي چې جګړې دومره نیږدې وي چې موږ فکروکړطالبان دارګ دننه ننوتلي ، ځکه له ارګ نه

هرچاهځه کوله چې پیښي سپکې کړي اویاچیرته دکومې ونې اودیوال شاته ځان خوندي کړي ، دخبریالانوپه ویناهماغه وه چې ددزوله لړارامې ورسته یوه تن مامورله ګل خانی ماڼی په ډیرې ورخطایي راغی اووي ویل چې په اصطلاح ولسمشرخوندي ځای ته ولاړ خبري کنفرانس لغوه اوعلت یې په ارګ ننی بریدپه ګوته شوی .

دکابل امنیتي اوبګیلوچاراواکوبیاڅوساعته ورسته په داسې حال کې چې دپیښې له ځای نه دلیدنې اجازه یې یوه خبریال ته هم ورنکړه صرف همداټکي یې اخوادیخواکول چې بریدکونکی یې ټول له پښو اچولي ، چاراواکو اوامنیتي موظفینوته هیڅ زیان ندی رسیدلې اوجګړه پای ته رسیدلې .

خوخلک پوهیږي چې بریدکونکي شپږ یااته تنه وه اومقابل شمیره یې ۴ زره تنه چې په هوایی ځواک اوهرډول وسلواووسایلو سمبال ول اوله بلې خواله ۸ مجاهدینوسره هومره وسلې اومحدود دمهمات په لاس کې ول چې ایله یې دوه ساته پرې جګړه پرمخ بیولي وای اوله بل لوري دهغوی هدف داوه چې دجګړي په دوران کې به دشهادت جام په سراروي ، ځکه تللي اودومره خطرونه یې منلي دهمدې مقدسې هیلې لپاره وو، نواوس دې دجنګ اوپوځي چاروبې غرضه ماهرین ووایي چې جګړه چاوګټله ۸ تنو اوکه ۴ زروتنو !!؟

دفارس نیوز دراپوراوتحلیل له مخې که څه هم دبریدوکونکوشمیر۴تنه ووخو نیږدې ۲ ساعته داریاناهوټل اودارګ په شمالي دروازو کې له خاصو امریکایي عسکرواوداخلي قواووسره لاس په لاس درنه اوخونړی جګړه ترسره کړه اودغه لږشمیري بریدکونکي په دې وتوانیدل چې له ۱۲ کلونوورسته ځان دارګ دروازوته ورسوي اوهلته داځرګندپیغام پریږدي چې دوی څومره غښتلي اوبرلاسي دي

په ارګ ،ایاناهوټل اودفاع وزارت په ماڼی دمجاهدینودغه ورستی برید له د ې امله ډیرمهم اوپریکنده وو چې دکابل رژیم اودارګ واکمنوپه قطرکې داسلامي امارت دبیرغ اولوحې په وراندې یوډول مزاحمت اوګستاخی ته ملاترلې وه ، رژیم نړی ته داویل غوښتل چې دافغانستان داسلامي امارت په نوم دوی څوک نه پیژني ؛ خودکابل په ارګ برید په ډاګه کړه چې سپین بیرغ اوداسلامي امارت نجات ښونکی نوم اوعنوان له څومره مشروعیت اوقابلیت څخه برخمن د ي ، که له یوې خوادسیاست اودیپلوماسی په میدان کې داسلامي امارت نوم کارولی اوسپین توغ رپولی شي ، له بل لوري دارګ په مستحکمې کلا اودروازوکې هم داسلامي امارت دقوت اوشتون ثبوت په ډاګه کولای شي

دکتونکوپه اند که یوبل داسې ګوزار داسلام دسرسپارلو اتلانو له لوري دکابل شریدلې اداره ته ورکړل شو دلوی خدای ج په نصرت به ډیرژراعلان وکړي چې سپین بیرغ هم مني ، داسلامي امارت نوم اوعنوان ته درناوی هم کوي؛ خوپام چې نوردغسې قیامت خیزه بریدونه وراباندي تکراراوترسره نکړی !

یاده دې و ي چې دکابلدورستیو فدایي شاځلمیانوپه کتارکې یوتن سرسپارلی مجاهد حافظ شفیع الله جان هم وو دغه اتل دافغانستان په سطحه دروحانیت ، تقوااوعلم دمنل شـوي اومشـهوري کـورنی ( دکابـل دموسـهی دسهاکواخندزاده صاحب شیخ الحدیث والقران مولانامحمدنبي جـان رحمـه الله لمســی ، دشـیخ الحـدیث والقـران مولاناعبدالقـدوس جـان رحمـه الله وراره اودشـیخ الحـدیث مولانافیض الله اخندزاده صاحب دزره ټوټه ځوی وو، الله تعالی دنومـورې خاندان فیوضـات اوبرکـات نـورهم سـاري اودایم ولري اودغه ستره قرباني دې ورته قبوله وګرځو ي ( امین )

## دعـــا:

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:
د پنځو کسانو دعاګانې په خاص ډول سره قبلیږي . د مظلوم دعا څو پورې چې هغه بدله واخلي ، د حج کوونکي دعا څو پورې چې کور ته نه وي راغلی ، د مجاهد دعا څو پورې چې شهید او ددی دنیا نه رخصت شوی نه وي ، د مریض دع...ا څو پورې چې جوړ شوی نه وي او د یو ورور د بل ورور د پاره غایبانه دعا): رواه البیهقی فی دعوات الکبیر

# د قطر دفتر هيلې او تشوېشونه!

عبد الرحيم " ثاقب"

دروان کال دغبرګولې دمياشتې په ۲۸ نېټه د سه شنبې په ورځ ديولړ ديپلوماتيکو مراسمو په ترڅ کې په قطر کې د اسلامي امارت سياسي دفترپرانستل شوچې دغه افتتاحی مراسم دقطر هيواد دبهرنيو چارو وزارت تر اشراف لاندې ترسره شول.

کله چې دلومړي ځل لپاره دطالبانو او امريکايانو ترمنځ په قطر کې دمذاکراتو اعلان وشو زياتره محللين په دې باوررول چې طالبان به په دغو مذاکراتو کې دامريکايانو په مقابل کې دتنازل او انعطاف پذيري له مخې له خپلو يولړ لوړو غوښتنو څخه لاس په سر شي ، خو ددغه دفتر په پرانستونکې وينا کې طالبانو په ښکاره وضاحت سره دخپلو محوري غوښتنو په يادولو سره په دې خبره ټينګار وکړ چې ددې دفتر له ايجاد څخه يې اصلي موخه دهيواد اشغال پاي پايته رسول او له هغه وروسته ورکې ديوه خپلواک اسلامي نظام رامنځته کول دی.

دقطر دفتر دتأسيس ضرورت.

کومه اساسي ستونزه چې له تيرو ۱۲ کلونو راهيسې طالبان ورسره مخ ول هغه د دوئ لپاره ديوه داسې ادرس نشتون وه چې دهغه له سياسي اوديپلوماتيک حصانت نه په استفادې سره نړيوالو ته خپلې مشروعې غوښتنې او پيغام ورسوي.

له همدې کبله د۱۲کلن مقاومت په جريان کې ځينې داسې مهمې پيښې رامنځته شوې چې هغه ددغه شاني يو ديپلوماتيک دفتر دنه شتون له وجې له ډيرو مشکلاتو سره مخ وې.

دبيلګې په توګه په کال ۲۰۰۷ کې دطالبانو دپنځوتنو لوړرتبه مشرانو دتبادلې په مقابل کې دايټالوي ژورنالسيت دانييلي ماسترو جاکومو دتبادلې پيښه ، همداشان د۲۰۰۷ کال دجولای په مياشت کې په غزني کې دطالبانو او کوريا هيواد دلوړرتبه چارواکو ترمنځ د۲۳تنه کوريايي اتباعو درهايي موضوع اوداسې نورې په لسګونو دبهرنيو اسيرو

اتباعوله متبوعو هیوادونو سره دهغوئ درهايي پروسې چې زياتره يې تراوسه هم دطالبانو ديوه مشخص سياسي دفتر دنه شتون له امله له مشکل سره مخ دي.

چې ددغه سياسي دفتر په ايجاديدلو سره به دخپلو نورو فعاليتونو ترڅنګ داشانی ستونزوته هم په خپل وخت سره رسيدګي کيدای شي.

د قطر دفتر دطالبانو غوښتنه که دامريکايانو ضرورت ؟

امريکايانو د نړيوال پوځي ايتلاف او ناټو تړون په مستقيمه مرسته پوره دولس کاله دطالبانو دله منځه وړلو لپاره پوځي هلې ځلې وکړې، خو په طالبانو يې هيڅ بری ترلاسه نکړای شو او دتريلونو ډالرو له خسارې اولسګونوزره پوځيانو له وژل کيدو او زخمي کيدو وروسته يې په ناچاره توګه راتلونکی ۲۰۱۴ کال له افغانستان څخه دټولو بهرنيوځواکونو دبيرته ايستلو نيته اعلان کړې.

داچې امريکا او ناټوتړون دنړۍ په کچه ترټولو مقتدر پوځي طاقتونه او اوس دخالي لاسه طالبانو لخوا له يوې ښکاره ماتې سره مخ دی نو هغوئ له همدغه فضاحت څخه دخلاصيدو لپاره په سياسي اوپوځي لحاظ داسې يوه جوړجاړې ته ضرورت لري چې دهغه په وسيله ځانته دخپلو پوزي په ښودلو سره نور له دې تباهی نه ځان وباسي.

دقطر دفتر ايجاد تصادفي پيښه نه بلکې امريکايانو دهغه دايجادولو لپاره له ډيره وخته راهيسې له مختلفو جهتونو او هيوادونو سره مشترکې هلې ځلې په کار اچولې وې.

په دې اړه دالقاعده تنظيم دريم نمبر شخص او ددغه تنظيم دشرعي کميټې مشر ابو حفص الموريتاني کوم چې دامريکايانولخوا دهغه په سر **۲۵** ميليونه ډالره انعام ټاکل شوی وه او اوس په موريتانيا کې په خپل کورکې تر څارنې لاندې ژوندکوي له الجزيره شبکې سره په خپلې وروستۍ مرکې کې داسې وايي:

زه چې کله له ايران څخه دموريتانيا هيواد په وساطت خپل هيواد اوکورته راوستل شوم امريکايي استخباراتي چارواکي ماته کورته راغلل او راته ويې ويل چې مونږ اوس پوهيدلي يو چې په طالبانوباندې زمونږ پوځي بريا ناشونې ده، نو مونږ اوس څه وکړو چې له افغانستان څخه زمونږ لپاره دسوله ايزپرشاتګ تضمين وکړي؟

ابوحفص وايي چې ماورته وويل چې دطالبانو په خلاف ستاسي ټولې پوځي هڅې بيځايه او بې ګټې دي ستاسو لپاره دحل اساسي لاره داده چې تاسو له طالبانو سره کينئ له هغوئ سره خبرې وکړئ او دهغوئ مشروعې غوښتنې ومنئ !....

همداراز په قطرکې دطالبانو ددفتر تر پرانيستنې يوه ورځ مخکې رويټرآژانس رپوټ ورکړ چې دناروي هيواد دبهرنيو چارو وزير Aspen Barth ددغه هيواد حکومتي ټلويزون ته په خپلو ښرګندونوکې وويل چې امريکايانو په سرې توګه په ناروي هيواد کې دطالبانو له چارواکو سره پټ مذاکرات درلودل چې په ترڅ کې يې دقطر ددفتر پرانيستلو ته زمينه مساعده کړای شوه.

دقطر دفترپرانيستلو په اړه دنړيوالو غبرګون.

دقطر دفتر له پرانيستنې سره سمدستي دامريکې ولس مشر باراک اوباما او دبريتانيا لومړي وزير ډيويډ کميرون خپل غبرګون ښرګند کړ او ددغه دفتر پرانيستنه يې په افغانستان کې دسولې ټينګښت لپاره يو مهم اقدام وباله.

همداراز روسيې هند اوپاکستان ددغه دفتر افتتاح د افغانستان او سيمې د سولې لپاره ګټور بللی دی.

ناروی ،جرمني او قطر هيوادونو هم په خپل رسمي موقف کې ددغه دفتر تاسيس دسولې دتأمين په لاره کې يو مثبت اقدام بللی.

همداشان په کابل کې دملي جبهې وياند په قطر کې د طالبانو د دفتر له جوړيدو څخه خپل مشروط ملاتړ اعلان کړ

اوداـلومړۍ ځل دی چې د حکومت سیاسي اپوزیسون له طالبانو سره د سولې د خبرو ملاتړ کوي.

خو ددغه دفتر دافتتاح په اړه دنړیوالو دمثبت غبرګون ترڅنګ دکرزي رژیم موقف بلکل منفي او په دې خبره یې سخت اعتراض څرګند کړ چې ولې دغه دفتر داسلامي امارت دسیاسي دفتر په نوم اعلان شو.

دقطر د دفتر دندې او مسؤلیتونه.

طالبانو په خپله پرانیستونکې ویناکې ددغه دفتر اهداف او دندې په لاندې توروکې مشخصې کړې:

۱-دنړۍ له هیوادونو سره دتعلقاتو دښه کولو لپاره افهام او تفهیم او خبرې کول.

۲-د یو داسې سیاسي او سوله ایز حل ملاتړ کول چې په هغه کې دافغانستان داشغال خاتمه، او هلته د یو خپلواک اسلامي نظام قایمېدل، او واقعي امنیت راتلل چې دټول ملت غوښتنه او هیله ده یقیني وي.

۳-د وخت له مقتضی سره سم له افغانانو سره لېدنې کتنې تر سره کول.

۴-له ملګرو ملتونو، نړیوالو او سیمه ایزو سازمانونو او غیر حکومتي موسساتو سره تماس نیول.

۵ .د اوسنیو سیاسي حالاتو په اړه سیاسي بیانونه دمطبوعاتو په اختیار کې ورکول.

که څه هم چې امریکایانو یوائې داغوښتل چې له دغه دفتر نه دطالبانو لپاره دیوه ادرس په توګه کار واخلي خو طالبانو هغه دادرس په توګه نه بلکې داسلامي امارت دسیاسي دفتر په حیث اعلان کړ چې په هغه کې به له امریکایانو سره دمذاکراتو ترڅنګ طالبان خپل سیاسي فعالیتونه هم همزمان پرمخ بیایي.

د قطر دفتر له افتتاح سره دکرزي دمخالفت لامل.

سره له دې چې له تیرو ۸ کلونو راهیسې کرزي له طالبانو سره دسولې شعار زمزمه کوي او ددې کار لپاره یې دسولې شورا هم ایجاد کړې خو نن چې په واقعي توګه دسولې دیوه مؤثر مرکز رامنځته کیدلو زمینه مساعده شوه کرزي ورسره خپل مخالفت اعلان کړ.

او هغه له دې وجې چې هم دکرزی مخالفینو (طالبانو ) اوهم یې مؤتلفینو( امریکایانو ) نوموړی نسیا منسیا ددفتر په پرانستلوکې له پامه وغورځاو ،همدا لامل وه چې نوموړي یې په اعتراض کې په نمایشي ډول له امریکایانو سره داستراتیژیک تړون په سر خبرې وځنډولې.

په افغانستان کې هم چې کله امریکایان په دې وپوهیدل چې دکرزي دفاسد اوناکام حکومت په موجدیت کې نور دهغوئ مصالح دتحقق چانس نه لري هماغه ده چې له پامه یې وغورځاوه.

خبره یوائې دکرزي په له پامه غورځولوکې هم نه خلاصیږي بلکې که امریکایان لازم وګڼي دکرزي په خلاف به له هغه افشن نه کار اخیستل هم دریغ نه کړي کوم چې روسانو په کال۱۳۵۸ هش کې دخپل خلاق رهبر نورمحمد تره کي او حفیظ الله امین په خلاف تري کاروا خیست.

دد قطر دفتر دایجاد لپاره ولې دغه وخت وټاکل شو ؟

که څه هم چې دقطر دفتر دایجادولو لپاره له تیرو دریو کلونوراهیسې دطالبانو او امریکایانو ترمنځ هلې ځلې روانې وې خو په دې وروستیوکې چې کله دایران دولت په رسمي بلنه دطالبانو یو لوړ پوړی پلاوی تهران ته سفر وکړ او هالته یې له ایراني چارواکو سره په ځینو موضوعاتو خبرې وکړې دی جریان له امریکایانو سره دا اندیښنه پیدا کړه چې ښایي امریکایان په افغانستان کې له طالبانو څخه دامریکایي مصالحو په خلاف داسې استفاده وکړي لکه څرنګه چې یې امریکایان په سوریه کې دبشار الاسد دراپرځولو په غرض له سوریایي وسله والو څخه کوي.

په تیره کله چې د ایران په انتخاباتو کې حسن روحاني بریالیتوب ته ورسید و او هغه اعلان وکړ چې مونږ د سوریې دلانجې حل یوائې په دې کې وینو چې د سوریې له مشروع حکومت (بشارالاسد) سره خبرې وشي دي اعلان نورهم امریکایان له تشویش سره مخ کړل او په مقابل کې یې د سوریایي وسله والو مخالفینو د پوځي مرستي او مسلح کولو پریکړه وکړه.

طالبانو ته د ایران رسمي دعوت او بیا د ایراني رسنیو لخوا د هغه اعلانول هم د امریکایانو د تنبیه کولو په غرض ترسره شول.

هماغه وه چې امریکایانو هم د موضوع د حساسیت په درک کولو سره بالمقابل له طالبانو سره د تفاهم او سیاسي جوړجاړي په غرض د قطر دفتر د پرانیستلو پروسه چټکه کړه ، داسې عاجلانه چټکتیا چې د جانبینو ترمنځ پکې ځینې مهم ټکي مبهم پاتي شوول چې وروسته وربانديې د دواړو لوریو ترمنځ اختلافات هم راپیدا شول او د طرفینو ترمنځ یې د ترسره کیدونکو مذاکراتو جریان ترپیلیدو له مخه له خنډ سره مخ کړ.

د قطر دفتر او په افغانستان کې د جګړې د ختمولو په لاره کې د هغه موثریت.

د قطر دفتر د افغانستان په لانجه کې د دو مهمو لوبغاړو (طالبانو - او امریکایانو ) د دوه اړخیز توافق په منځ کې



تاسیس شوی ، دلته به د ترسره کیدونکو مذاکراتو او اجراأتو اصلی ترکیز له افغانستان څخه د بهرنیو ځواکونو په وتلو باندې وي او ددې په څنګ کې به په خپل وخت اوزمان کې طالبان خپله سیاسي تګلاره او د افغانستان د جریاناتو په اړه خپل مواقف هم له دغه دفتره نړیوالو ته اعلاموي.

داچې په افغانستان کې د نا امني اصلي لامل بهرنی اشغال دی طالبانو هم د دفترپه پرانستونکې اعلامیې کې ترټولو له مخه د اشغال خاتمه د خپلو لومړیتوبونو په سرکې ځای کړې او د دفتر د ایجاد اصلي هدف یې هم دغه ټکی ټاکلی.

د قطر د دفتر ایجاد په آنی ډول په افغانستان کې د طالبانو او بهرنیو ځواکونو په پوځي مقابلې په سوړوالي او کموالي هیڅ تاثیر نشی غورځولی ، چې ددې ادعا ښکاره ثبوت د طالبانو لخوا په بګرام باندې د هغه توغندویي برید ترسره کول دي چې د دفتر د پرانیستنې په سهار ترسره او په ترڅ کې یې څلور امریکایي پوځیان ووژل شول.

د قطر د دفتر اصلي رول له افغانستان څخه د بهرنیو ځواکونو دوتلو او د بندیانو د تبادلې په پروسه متمرکز دی، چې پورتنې دواړه عوامل په افغانستان کې د جګړې اساسي وجوهات بلل کیږي او په له منځه تللو سره یې په طبیعي ډول سولې ته په خپله زمینه مساعده کیږي.

د قطر دفتر د طالبانو که د اسلامي امارت سیاسي دفتر؟

هغه څه چې د دغه دفتر په مقدماتي اجراآتو کې د جانبینو ترمنځ په ابهام کې پاتې دي هغه د دفتر نوم او د هغه کاري اجراآت دي.

طالبانو په لومړۍ ورځ دغه دفتر د اسلامي امارت په نوم اعلان کړ او په دغه دفترکې ترسره کیدونکې فعالیتونه یې هم په **۵** نقطوکې مشخص کړل ، خو وروسته چې د کرزي حکومت په همدغو مشخصاتو سره د دفتر په موجودیت امریکایانو ته خپل شکایت وکړ نو د امریکې د بهرنیو چارو وزیرجان کیری قطري چارواکوته دستورورکړ چې د هغه له

مخه قطري چارواکو له دفتر څخه د اسلامي امارت د لوحې او بیرغ لیري کولو خبر په رسنیو کې نشر کړ.

نړیوالو رسنیو د اسلامي امارت د بیرغ ښکته کولو او لوحې لیرې کولو خبر په داسې حال کې نشر کړ چې هغوئ د دغې صحنې هیڅ ډول ژوندي ثبوت ندی ورسره نشر کړی او نه د دغې لیکنې تر لیکلو پورې په حقیقت کې د اسلامي امارت بیرغ او لوحه لیرې شوې یا ښکته شوې.

هغه څه چې په دې اړه واقعا ترسره شوي هغه دا چې بیرغ یو متر ترپخواني حال راښکته او لوحه هم د دفتر د بهرنی دیوال په ځای د دفتر د حریم په داخلي دیوال نصب شوې.

خلاصه:

د افغانستان جګړه د امریکایانو لپاره تر ټولو اوږده او له پوځي او اقتصادي تلفاتو ډکه جګړه بلل کیږي ، په همدغې جګړې کې د امریکې په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره د امریکایي پوځ مربوط یو سرتیری( بو برګډال )د افغانانو لخوا اسیر کیږي او د خلاصولو لپاره یي امریکایان هیڅ وس هم نه لري.

دا هغه وجوهات دي چې امریکایان یې په سر بد اله ډول نور د دغې ملاماتوونکي او شرموونکې جګړې د پایته رسولو هڅه کوي ، د قطر د دفتر هم د دغه اساسي هدف لپاره د امریکایي مقاماتو په توافق جوړ شوي دا به وروسته ولیدل شي چې امریکایان په خپل دغه هدف کې تر کومه حده بریالیتوب ته رسیږي ، هغه څه چې په اوسنیو شرائطو کې د افغانستان په پوځي صحنه کې لیدل کیږي هغه دا چې د امریکایانو په مقابل کې جنګیدونکي طالبان د لوړ پوځي مورال په درلودلو سره د بهرینو په خلاف خپل مقاومت ته دوام ورکوي او د بهرنیانو له بې قید او شرط وتلو پرته په هیڅ شي پخلاکیدلو ته زړه نه ښه کوي.

## هغه کسان چې له یخو اوبو سره مینه لری حتماً دی یی ولولی .

تړووړی وروسته هرکس دا غواړی چې یو ګیلاس یخی اوبه وڅیښنی خو کله چې یخی اوبه تاسو وڅیښنی نو هغه غوړ مواد چې په غذا کښې دی هغه کلکوی چې ورسره دهاضمې پروسه کمزوری کوی بیا کله چې همدا غوړ له ...تیزابونو سره تعامل وکړی پارچه کیږی ترغذایی موادو مخکې دوی جذبیږی دکولمو په دیوالونو کښې ځای نیسی او په وازګی بدلیږی او د سرطان سبب کیږی .

بهتره داده چې تر ډوډی وروسته معتدل حرارت لرونکی اوبه وڅیښنی په ژمی کښې داوبو رسولو پیپونه ولی ماتیږی ؟

کله چې جامده ماده په مایع اړوو نو انرژی باید ورکړل سی ترڅو په مایع واوړی خو کله چې مایع په جامد اوړی نو خپله انرژی ازادوی او هغه انرژی دیوبل جسم اویا دهوا اتموسفیر ته جذبیږی .

کله چې اوبه ګنګل... کیږی نو جسامت یی ۹ څخه تر ۱۰ سلنه جګیږی ځکه داوبو دهرو ځلورومالیکولوونو ترمنځ خالیګاه رامنځته کیږی نو همدی وجه ده چې جسامت زیاتیږی په همدی وخت کښې خپله انرژی ازادوی کله چې اوبه په پیپ کښې وی او بیا ګنګل کیږی نو داجسامت زیاتوالی پر پیپ ډیرزیات فشار راوړی چې په نتیجه کښې دپیپ دماتیدو سبب کیږی.

هیره دی نوی دیو کیلو ګرام داوبو دګنګل او یخی کیدو په مرحله کښې ۳۳۳،**۵۵** ژوله انرژی ازادیږی چې همدانرژی هم پرپیپ مالیکلونو باندی فشار رواړی او ماتوی یی.

مولوي سيد محبوب

# روژه

## د رحمت، برکت او مغفرت میاشت

ګرانو مسلمانانو!

مخکي تر دې چي دا مبارکه میاشت راورسیږي، راځئ چي په بشپړه امانتداري او رښتینولي له ځانه سره ځيني پوښتني مطرح کړو، تر څو دا میاشت بې له خالصي توبې، طاعت او عبادت څخه زموږ د لاسه ولاړه نه سي او د هغې قیمتي شېبې وړیا ضایع نه سي. خدای $\Psi$ خبر چي بل کال به موږ او دغه د برکت، مغفرت (بخښني) او رحمت میاشت سره مخ سو او که نه.

آیا موږ په همدغه مبارکه میاشت کي د توبې ایستلو عزم کړی دی؟ آیا له ګناهونو او منکراتو څخه مو د لاس د اخیستلو او د کایناتو د لوی پروردګار سره د نیکو اعمالو د سر ته رسولو او د یوې نوي صفحې د پرانیستلو اراده کړې ده؟

آیا موږ د دې مبارکي میاشتي د ورځني عبادت لپاره یو منظم تقسیم اوقات برابر کړی دی، چي د هغه له مخې د همدغه مبارک موسم د شپو او ورځو هر کلی وکړو؟

که موږ رښتیا هم پر تېر وخت پښېمانه یو، چي هسي مو له لاسه ووت او په راتلونکي کي د ګناهونو او شرعي مخالفتونو د پرېښودلو هوډ مو کړی وي نو رښتیا هم چي موږ د ژوندانه په ارزښت پوه سوي یو او نور به خپله آینده رغوو، په همدې شکل به موږ له معنوي سکون او د الله تعالی $\Psi$ له نعمتونو څخه لذت واخلو او که مو همدا موسم هم تش د تېر په شان له لاسه ووت نو په دې باید وپوهیږو ، چي خپل عمر مو ضایع کړ او نېکمرغي مو په برخه نه سوه.

امام ابن الجوزي ﷬ فرمايي:

انسان ته په کار ده، چي د خپل وخت عزت او قدر وپېژني او یوه شېبه هم د الله تعالی د رضاء د لاس ته راوړلو څخه پرته په بل څه کي ضایع نه کړي او یو تر بل غوره او نېک کارونه او نیکي خبري ځان ته خپلي کړي او تل يې دخیر د کارونو داسي پوخ نیت کړی وي چي کله هم پکښي سستي او ستوماني محسوس نه کړي.

له عامر بن قیس ﷬ څخه نقل سوی دی، چي یو چا ور ته وویل: خبري راسره وکړه، هغه په جواب کي ور ته وویل: د یو څو شېبو لپاره لمر ونیسه زه به خبري در سره وکړم.

### رښتیا هم چي عمر ډېر په چټکي روان دی.

هغه څوک چي دنیوي کاروبار او تجارت کوي یوه شېبه هم د یوه ډېر نژدې ملګري لپاره وخت نه ضایع کوي او که کله هم د ګټي یو چانس ور ته په لاس ورسي نو پالتوې له لاسه نه ور کوي او که يې له لاسه ووزي ډېر ورباندي خواشینی او غمجن وي. موږ داسي اخروي موسمونه چي په هغه کي د الله تعالی سره تجارت زموږ لپاره زیاتي ګټي لري ولي په پام کي نه نیسو، تر څو د نیکو عملونو او عبادتونو لور ته ګړندي سو او هغه ستري ګټي چي د الله تعالی له لوري ثوابونه او اخروي بې شمېره نعمتونه او دنیوي نېکمرغي دي لاس ته راوړو.

دغه د روژې میاشت هغه لوی فرصت دی، چي نېکان ور ته تیاری نیسي او پرهېزګاران ډېر ور ته خوشحاله وي او ویښ مسلمانان يې په ډېر مینه انتظار باسي. دا میاشت د ګناهونو د بخښلو، د جنت د ګټلو او د جهنم له عذابونو څخه د نجات موسم دی، خو د هغه چا لپاره چي زړه يې روغ، اندامونه يې په شرعي موازینو برابر وي او د همدغي مبارکي میاشتي ورځي په خوب کولو او شپه يې په قطعه بازۍ، د

تلوېزوني فلمونو او ډرامو په کتلو او په بې ځايه محفلونو تيري کړي نو د روژې نيولو له اجر او ثواب څخه بېشکه بې برخي سو.

دا د ګوتو په شمېر يو څو شپې او ورځي دي، چې کله مياشت رادبره سي وربانديپوه نه سو، چې څرنګه ووتله نو راځئ چې له دې اخروي تجارتي موسم سره په هغه شکل تعامل وکړو لکه د دنيا د تجارت له موسمونو سره چې يې کوو، که رښتيا مو په دې يقين وي چې يوه ورځ له دې فاني نړۍ څخه تلونکي يو او هلته موږ د نيکو اعمالو سرمايې ته اړتيا لرو.

رسول الله ρ فرمايي:

عن ابي هريره τ قال: قال رسول الله ρ رغم انف رجل ذكرت عنده فلم يصل على ورغم انف رجل دخل عليه رمضان ثم انسلخ قبل ان يغفر له ورغم رجل ادرک عنده ابواه الكبر فلم يدخلاه الجنة. (رواه الترمذي)

ترجمه: له ابوهريره τ څخه روايت دی، چې رسول الله ρ وفرمايل: د هغه چا دي پزه په خاورو سپېره سي، چې زه يې په مخ کي ياد کړل سم او پر ما درود ونه وايي او د هغه چا دي پزه په خاورو سپېره سي چې د روژې مياشت ور ته راغله او ور څخه ووتله مخکي له دې چې د ده ګناهونه پکښي وبخښل سي او د هغه چا دي پزه په خاورو سپېره سي چې په ژوند کي يې مور او پلار سپين ږيري سي او دی جنت ته نه ددنه باسي (يعني د هغوی خدمت ونه کړي).

## د روژې فضايل

د رمضان د مياشتي روژه نيول دهجرت په دوهم کال کي د شعبان د مياشتي په دريمه د دوشنبې په ورځ فرض سوه. د هغې فرضيت په قرآنكريم او نبوي احاديثو او د امت په اجماع سره ثابت سوی دی، په قصد سره يې خوړل لوی جرم، کبيره ګناه او ډېر خطرناک کار دی او منکر يې بېله شکه کافر دی، فرضيت يې په لاندي مبارک آيت سره ثابت دی، الله تعالی Ψ فرمايي:

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٨٣﴾ سورة البقره- ١٨٣)

ترجمه: اې هغو کسانو، چې ايمان مو راوړی دی پر تاسو باندي روژه نيول فرض ګرځول سوې ده، لکه له تاسو څخه مخکي (پر امتونو، قومونو او پيغمبرانو باندي چې فرض کړل سوې وه) د دې لپاره چې ځانونه د ګناهونو څخه وساتئ او د تقوا خاوندان سئ.

په بل مبارک آيت کي الله تعالی Ψ فرمايي:

شَهْرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِىٓ أُنزِلَ فِيهِ ٱلْقُرْءَانُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَـٰتٍ مِّنَ ٱلْهُدَىٰ وَٱلْفُرْقَانِ ۚ فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ ٱلشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ (سورة البقره- ١٨٥آيت)

ترجمه: د روژې مياشت هغه مياشت ده چې په هغې کي قرآنكريم نازل سوی دی، چې هغه (قرآنكريم) د خلکو لپاره هدايت، لارښوونه او ښکاره دليلونه دي چې حق او باطل سره بېلوي، نو کوم مکلف مسلمان چې دا مياشت وليدله نو ضروري دي د هغې مياشتي روژه ونيسي.

رسول الله ρ فرمايي:

عن بن عمر τ قال: قال رسول الله ρ: بني الاسلام على خمس شهادة ان لا اله الا الله و ان محمدرسول الله و اقام الصلاة و ايتاء الزكاة والحج و صوم. (صحيح البخاري)

ترجمه: د عبدالله بن عمر τ څخه روايت دی چې رسول الله ρ وفرمايل: د اسلام دين پر پنځو شيانو جوړ دی.

١. دا شاهدي ورکول، چې د الله تعالی Ψ نه پرته بل څوک د عبادت وړ او لايق نسته، دا شاهدي ورکول چې محمد ρ د الله تعالی Ψ رسول او پيغمبر دی.

٢. او د لمانځه درول (کول).

٣. او د زکات ورکول.

۴. د حج اداء کول.

۵. د رمضان د مياشتي روژه نيول.

رسول الله ρ فرمايي:

عن ابي هريرة τ قال: قال رسول الله ρ من صام رمضان ايماناً

و احتساباً غفر له ماتقدم من ذنبه. (صحیح البخاري)

ترجمه: د ابي هريرة τ څخه روايت دی، چې رسول الله ρ وفرمايل: چا چې له الله تعالی Ψ د اجر او ثواب د غوښتلو په نيت د رمضان د مياشتي روژې د ايمان او عقيدې په رڼا کې ونيولې، نو د هغه تېر ګناهونه به ټول ورو بخښل سي.

په بل حديث شريف کې راغلي دي:

عن ابي هريرة τ عن النبي ρ قال: اذا دخل شهر رمضان فتحت ابواب السماء و غلقت ابواب جهنم و سلسلت الشياطين. (صحیح البخاري)

ترجمه: حضرت ابوهريرة τ د پيغمبر ρ څخه روايت کوي چې هغه مبارک فرمايلي دي، چې: کله د رمضان مياشت داخله سي د آسمان دروازې خلاصې سي او د جهنم دروازې وتړل سي او شيطانان په ځنځيرونو وتړل سي.

د حضرت سهل τ څخه روايت دی، چې رسول الله ρ وفرمايل، چې په جنت کې يوه دروازه ده چې ريان نوميږي، روژه لرونکي به پر هماغه دروازه جنت ته ننوزي او بل به هيڅوک له هغې دروازې څخه نه ننوزي، اعلان به وسي، چې چېر ته دي روژه لرونکي؟ هغوی به (جنت ته) ولاړ سي او بل به هيڅوک نه ننوزي چې کله هغوی (روژه لرونکي) دننه سي وبه تړله سي او په هغه دروازه به بيا هيڅوک جنت ته دننه ولاړ نه سي (يعني دا دروازه د روژاتيانو لپاره ځانګړې سوې ده. (رواه البخاري)

همدا ډول په بل مبارک حديث کې راغلي دي:

د حضرت ابوهريرة τ څخه روايت دی، هغه وايي چې کله د روژې مياشت راورسېدله نو رسول الله ρ وفرمايل:

تاسي ته يو داسي مبارکه مياشت راغله، چې د هغې د روژو نيول پر تاسي فرض ګرځول سوي ده. په هغې کې د جنتونو دروازې خلاصيږي او د دوږخ دروازې تړل کيږي او سرکښه شيطانان قيدکړل کيږي په همدغه مياشت کې يوه شپه ده چې تر زرو مياشتو غوره ده څوک چې يې له خير څخه محروم سو نو هغه له هري ګټي څخه بې برخي سو. (سنن النسائي)

په بل حديث کې فرمايي: د ابو هريرة τ څخه روايت سوی دی، چې رسول الله ρ وفرمايل: ستا پروردګار وايي: د هري نېکۍ بدله له لسو څندو څخه نېولې تر اوو سوو پوري کيږي، الله تعالی فرمايي چې روژه زما لپاره نيول سوې ده او زه به بنده ته د هغې بدله او ثواب ورکوم او روژه د اور څخه ډال دی او د روژاتي د خولې بوی الله تعالی ته د مشکو تر خوشبويي زيات خوشبويه دی، نو که يو ناپوه په جهالت سره په روژه لرونکي تېرې کوي نو ورته دې وايي چې زما روژه ده. (رواه ترمذي)

په بل حديث کي فرمايي: د حضرت ابوهريرة τ څخه روايت دی، چې رسول الله ρ وفرمايل: چا چې (په روژه کې) درواغ ويل او د ګناه کارونه نه پرېښودل نو الله تعالی چا ته ضرورت نه لري. چې خوراک او څښاک ور ته پرېږدي. (رواه البخاري)

## د روژه نيونکي لپاره دوې خوشحالۍ

امام بخاري په خپل کتاب د سند سره ذکر کړي دي: (للصائم فرحتان يفرحهما: اذا افطر فرح و اذالقي ربه فرح بصومه).

ژباړه: د روژه نيوونکي لپاره دوې خوشحالۍ دي، چې هغه خوشحاله کوي: کله چې ماښام روژه ماته کړي نو خوشحاله سي او کله چې د الله تعالی سره مخ سي نو بيا په خپله روژه خوشحاله سي.

## د روژه نيوونکي دعا نه ردېږي، يعني قبليږي

د حضرت ابوهريرة τ څخه روايت دی چې پيغمبر ρ فرمايلي دي: د درو کسانو دعا نه ردیږي: عادل پاچا، روژه نيوونکی تر څو چې روژه ماته کړي او مظلوم. (سنن ابن ماجه)

## د قدر د شپې فضيلت

د قدر شپه د روژې په مياشت کې تر ټولو غوره او بهترينه شپه ده، الله تعالی Ψ په قرآنکريم کې فرمايي:

إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ ٱلْقَدْرِ ۝١ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ ۝٢ لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ۝٣ (سورة القدر-١، ٢، ٣)

ترجمه: موږ نازل کړی دی دغه (ټول قرآن) د قدر په شپه او

څه شي پوه کړې ته (اې محمده) چې د قدر شپه څه ده (د عزت او شرافت له پلوه؟) د قدر شپه غوره ده له زرو میاشتو څخه (هغه زر میاشتې چې دغه د قدر شپه پکښې نه وي).

سبحان الله! ګرانو مسلمانانو تاسې زرو میاشتو ته حساب وکړئ چې څو کاله کیږي، یعني په دغه شپه کې طاعت او عبادت د زرو میاشتو تر عبادت هم زیات دی.

رسول الله ρ فرمایي: هغه څوک چې د ایمان او اجر له امله د قدر شپه ویښه کړي (عبادت پکښې وکړي) مخکني ګناهونه به یې ورته وبخښل سي... د حدیث نوره برخه مخکې ترجمه سوې ده. (صحیح البخاري)

## د قدر د شپې مخصوصه دعا

اللهم انک عفو تحب العفو فاعف عنا!

د روژې فضایل دومره ډېر دي که ټول حدیثونه یې راټول کړل سي یو لوی کتاب ځني جوړیږي. دلته همدومره کفایت کوي په نورو کتابونو کې یې کتلای سئ.

## د روژې په قصداً خوړونکی لوی بدبخت دئ

د حضرت ابوهریره τ څخه روایت دی، چې رسول الله ρ وفرمایل: کوم سړی چې د شرعي عذر نه پرته د رمضان المبارک یوه روژه وخوري، نو که د روژې د میاشتې پر ته ټول عمر روژه ونیسي د هغې یوې روژې ځای نه نیسي. (رواه احمد، ترمذي و ابوداود)

ګرانو مسلمانانو وروڼو او خویندو!

په دې کې څه شک نسته چې رمضان مبارک میاشت د اجرونو او ثوابونو میاشت ده. د الله تعالی نېک بندګان او د خیر غوښتونکي انسانان دغه میاشت یو طلایي فرصت ګڼي تر څو په دغه موسم کې د خپلو نېکیو په ذخیره کې زیاتوالی راولي ځکه خو هغوی د اجر او ثواب په کارونو کې دومره زیات مشغول وي چې هیڅ یوه دنیوي کار ته یې ورپام هم نه وي، هغوی نه یوازې دا چې د ورځې لخوا روژه نیسي او اپه انساني ټولنه کې د خیر او ثواب پروګرامونه پرمخ بیایي بلکې شپه یې هم ټوله په نفلونو او قیام او تلاوتونو او د خیر د کارونو د کولو لپاره په پلان ګذارې تېرېږي. خپله هم دیني علم حاصلوي نورو ته یې هم ورښیي، په دعوت او مجاهده بوخت وي، خلک په نېکیو امر کوي او د بدو څخه یې منعه کوي او د ستومانۍ احساس هم نه کوي، په مقابل لوري کې موږ داسې کسان هم وینو چې روژه خو نیسي او مسلمانان دي خو د زیاتې خواشینۍ ځای دی چې په همدغه مبارکه میاشت کې یې د هغې له برکتونو څخه هیڅ ګټه نه وي اخیستې. معمول یې هم داسې وي چې د ورځې په معامله کې دروغ، قسم، په خبرو کې غیبت، بشکنځل، د مسلمان خطا ایستل، غبن فحش او شپه یې په کرمبوړ، شطرنج، قطعه بازۍ، فلمونو او ډرامو په کتلو او اورېدلو تېره سي، پېشلمې کړي یا نه کړي د سهار لمونځ کړي یا نه کړي په روژه مات دومره ډوډۍ وخوري چې بیا د ماخستن لمونځ او تراویح هم ورځني پاته وي.

دغه وروڼه او خویندې باید وپوهوو ځکه دا زموږ او ستاسې دیني مسئولیت دی او د الله تعالی په دربار کې د ځان او ټولو مسلمانانو لپاره د هدایت دعا وکړو.

نن چې د مسلمانانو ډېر بد حال دی او خصوصاً پر موږ افغانانو چې دا ډېرش کاله د الله تعالی مختلف عذابونه نازل دي او ورځې تر بلې په مختلفو مصیبتونو کې اخته کیږو د دې عذابو تر ټولو لوی سبب زموږ او ستاسې ګناهونه دي موږ او تاسې په شعوري او غیر شعوري توګه په مختلفو ګناهونو اخته یو، تر څو چې د الله تعالی په دربار کې په اخلاص توبه ونه کاږو تر څو چې د مسلمانانو په حیث خپل دیني او اسلامي مسئولیتونه ونه پېژنو او ورته متوجه نه سو نو خدای مه کړه دا عذابونه به نور هم زیات سي، نو راځئ چې په ګډه ټول هیوادوال ددغه الهي فرصت نه په استفادې سره په دغه مبارکه میاشت کې خپل پروردګار ته رجوع وکړو او په ټولیزه توګه په ډېر اخلاص، صداقت، رښتینې او نصوحاً توبه وکاږو، الله دې موږ او تاسې ته توفیق راکړي. آمین

## د روژې حکمتونه

د رمضان د مبارکې میاشتې روژې په اسلامي شریعت کې له یوې خوا د الله تعالی لخوا فرض کړل سوې عبادت او د اسلام دریم رکن ګڼل کیږي خو له انساني پلوه هم زیات حکمتونه او اضافي ګټې

لري، چي په لنډ ډول اشاره ورته کيږي:

۱. د روژې روحي ګټه:

روژه د انسان روح تصفيه کوي او هغه ته صبر، قوت او استقامت وربخښي، د روژې د رواوالي خورا ارزښتناک حکمت د نفس او روح تزکيه ده، د روژې په واسطه کولای سو، چي پر نفس باندي غلبه حاصله کړو، او پر نفس باندي غلبه حاصلول او هغه په قابو کي راوستل او الهي حکومت او قانون ته د هغه چمتو کول او برابرول په اسلام کي د انسان څخه يوه حتمي او ضروري غوښتنه ده.

حضرت شاه ولي الله ﷬ په خپل کتاب حجة البالغه کي ليکي: روژه پر نفس باندي د غلبې لپاره روا سوې ده لکه الله تعالی چي فرمايلي دي: لعلکم تتقون! (ښايي چي تاسي پرهېزګاره سئ) او لکه چي رسول الله ρ فرمايلي دي:

فان الصوم له وجاء (يقيناً روژه د هغه چا لپاره چي جنسي غريزه او شهوت لري او د نکاح قوت نه لري د ناوړه شهوت له منځه وړونکې ده، يوه پوره او صحيحه روژه هغه ده، چي د څيرونکو حيواناتو (ځناورو) د خويونو او شيطاني ناوړه شهواني اقوالو او افعالو څخه پکښې هم ځان وژغوري، ځکه چي دغسي افعال او اقوال نفس ته بد او ناوړه اخلاق او خويونه وريادوي او فاسدو کارونو ته يې راباسي. (حجة البالغه، ۱۲۵/۲ مخ)

علامه ابن الهمام ﷬ په فتح القدير کي په دې معنی ليکلي دي: الله تعالی روژه د ګڼ شمېر ګټو لپاره روا کړې ده، چي د هغې د ډيرو غټو ګټو څخه يوه دا ده چي پر بدو باندي امر کوونکی نفس آراموي او کنټرولوي يې.

۲. اقتصادي ګټي:

روژه د دې تر څنګ چي د الله تعالی يو ځانګړی عبادت دی. د روژه لرونکي لپاره اقتصادي ګټه هم لري روژه هغه ته د دې ښوونه کوي چي هغه بايد سپما وکړي او تل په مړه خېټه ونه ګرځي، هغه د دې پر ځای چي په څليرويشت ساعتونو کي درې او يا څلور ځلي خپل خېټي ته خواړه ور کښته کړي کولای سي يو ځل او يا دوه ځلي يې په متوسطه توګه مړه کړي، په دې شکل روژه لرونکی کولای سي د خپل څليرويشت ساعته د خوړو لګښت ۳۵٪ فيصده ته راکم کړي.

هغه سپېڅلي خواړه چي روژه يې د روژه لرونکي له خېټي څخه سپموي که روژه لرونکی د بېوزلي طبقې څخه وي کولای سي د هغه د معيشت معيار په دې وجه بهتر کړي چي د هغه د يوې ورځي د خوړو مصارف د روژې په برکت د درو ورځو لپاره کفايت کولای سي.

او که روژه لرونکی د شتمني طبقې څخه وي هم د روژې له برکته يې د سپما پروګرام د مساکينو او د هغه په څنګ کي د اوسېدونکو ګاونډيانو او بېوزلانو پر اقتصادي حالت مثبت اثرات پرېباسي هغه په دې شکل چي هغه خواړه چي هغه د خوراک څخه سپميږي کولای سي د دې پر ځای چي خراب سي پر نژدې ګاونډيانو مساکينو باندي ووېشي، بل دا چي هغه مصارف چي د يوه سرمايه دار په ورځني خوراک باندي دوه يا درې ځلي لګول کېدل اوس د روژې په برکت يو ځل لګول کيږي، چي کولای سي د پېشلمي لپاره هم استفاده ورڅخه وکړي. دا سپېڅلي مصارف روژه لرونکی کولای سي د ټولني د لوېدلو افرادو د اقتصادي حالت د ښه والي لپاره ولګوي، چي يا خو هغوی ته خوراکي مواد په واخلي او يا ورته د کار او روزګار ځيني مواقع برابر کړي او يا يې يو بل اجتماعي مشکل ورباندي ختم کړي.

۳. اجتماعي ګټي:

همدا راز روژه هر مسلمان ته د شتمنۍ قدر ور پېژني، د الله تعالی بې شماره نعمتونه چي د انسان ډېر لږ ورته پام کيږي خو روژه يې ورته متوجه کوي چي د همدغو نعمتونو شکر ادا کړي، روژه امير او فقير، پادشاه او ګدا او د ټولني ټول طبقات په مساوي شکل د يوه او بل په څنګ کي دروي، روژه موړ انسان ته د لوږي تکليف ورپېژني او تږي مسلمان ته د اوبو اهميت ورپېژني، روژه سرمايه داران او بدايان پوهوي چي د ټولني لوېدلي طبقات چي د وسايلو د کمښت سره ټول ژوند لاس او ګرېوان وي څرنګه د لوږي له هغه مشکل سره ټول ژوند ډغري وهي کوم چي هغه يې د يوې ورځي لپاره د تحمل تاب نه لري. ځکه خو الله تعالی د هغې د فرضيت اصلي او اساسي مقصد دا ښودلی دی چي مسلمانان د تقوا خاوندان جوړ سي.

۴. د روژې روغتيايي ګټي:

پر مختللي انساني طب دا ثابته کړې ده، چي روژه معده هوسا کوي او د هاضمې سیستم منظم او فعاله کوي او د روژه لرونکي بدن له اضافي وازګو او چربیو څخه خلاصوي خو دا هغه وخت چي روژه لرونکي د روژه مات آداب په پام کي ونیسي، یو څو خرماوي او اوبه په روژه مات وخوري او کوم خوراک چي کوي په هغه کي د اعتدال لاره غوره کړي.

په حدیث کي راغلي دي: عن ابي هریرة τ قال: قال رسول الله ρ: صوموا تصحوا. (ابن السني والطبراني)

ترجمه: د ابوهریره τ څخه روایت دی، چي رسول الله ρ وفرمایل: روژې ونیسئ چي صحت او روغتیا ومومئ.

روژه نیول د هغه چا لپاره چي د خوږې (Sugar) په ناروغي اخته وي طلایي چانس دی، چي د روژه لرونکي شوګر ادنی درجې ته راکښته کړي، په دې اساس د پنکریاس غدې ته د ښې هوسایني وخت ور کوي، پنکریاس د بدن هغه برخي دي چي انسولین تولیدوي نو کله چي خواړه تر تولید سوي انسولین زیات وخوړل سي د پنکریاس غده د ستوماني سره مخامخ کیږي، چي نه سي کولای خپله دنده سر ته ورسوي، ځکه خو قندیات په وینه کي یوځای کیږي او درجه یې لوړیږي په نتیجه کي یې د خوږې ناروغي منځته راځي.

همدا راز روژه نیول د انسان د زیات وزن په راکمولو کي هم مؤثره ثابیتیږي ځکه په اوس وخت کي زیات وزن د ډیرو ناروغیو سرچینه ده خو په دې شرط چي د روژه مات او پیشلمي په خوراک کي د اعتدال لاره خپله سي.

روژه یوازینۍ هغه وسیله ده چي انساني جسم د زهر جنو موادو او له نقصاني او مؤذي ترسباتو څخه پاکولای سي، لکه چي یو امریکایي ډاکټر اډوارډبوای Edwar Boy وایي: هیڅ یوه داسي ناروغي او رنځ نسته، چي ځواک یې د روژې په وړاندي د مقاومت توان ولري.

شیخ الاطباء ابن سینا یوه ځانګړې طریقه درلودله، چي د ناروغیو په زیاترو حالتونو کي به یې خپل ناروغ په دې مجبورولو چي درې هفتې روژه نیسي او بل دا چي روژه د مختلفو دخانیاتو د استعمالوونکو لپاره ښه فرصت دی، چي خپل عمل لکه سګرېټ، نسوار، چرس او نور خطرناک مخدارت په آسانه توګه پرېږدي. همدا راز د روژې د روغتیایي ګټو په اړه ډېر کتابونه لیکل سوي او څېړل سوي دي چي مؤلفین یې مسلمانان او غیر مسلمانان دي او لوستونکي کولای سي مطالعه یې کړي، دلته همدومره کفایت کوي.

یادونه:

د روژې نیول کومي ګټې چي عصري او طب ښودلي دي داد اسلام د حقانیت ثبوت او د دې دین تلپاتـه معجزې دي، چي د هري ورځي په تېرېدلو سره یې نړیوالو ته حقانیت ښکاره کیږي خو موږ چي روژه نیسو هدف او موخه به مو یوازې د الله تعالی د حکم تعمیل، د هغه بندګي او د رسول الله ρ د سنت مطابعت وي، نه دا چي د روغتیا یا د بدن د وزن د کمولو په نیت دا کار سر ته رسوو، تر څو چي د اخروي اجر څخه محروم پاته نه سو، خو کوم څه چي موږ ذکر کړل دا د روژې اضافه دنیوي ګټې دي او د هغې د فرضیت ځیني الهي حکمتونه دي.

## د روژې رکن یا فرض

د نس او فرج د شهوتونو څخه لاسنیوی د روژې رکن دی. یا په بل عبارت د خوراک، چښاک او جماع نه کول په روژه کي فرض دي.

یعني هغه شیان چي رژه ماتوي د هغو څخه په کلکه ډډه کول فرض دي. په خوړلو او چښلو کي دا هم شامل دي چي معدې ته په یوه بله طریقه سره خواړه یا درمل ورسول سي او د ښځي سره په کوروالي کي هغه ټول صورتونه شامل دي چي په هغه سره انسان په اراده سره نفساني خواهش پوره کړي.

## د روژې وخت

د صبح صادق څخه شروع او د ماښام د لمر لوېدو پوري ختمیږي.

## د روژې مستحبات او آداب

۱. د لمر لوېدلو سره سم تر لمانځه مخکي روژه ماتول (ځنډول یې مکروه او بې ځایه بزرګي ده، البته چي وریځ نه وي). (شرح التنویر و ردالمختار، ج ۱، ص ۱۸۳)

۲. په لندو یا وچو خورماګانو، او که هغه نه وي بیا په اوبو سره روژه ماتول، په مالګه سره ماتول صحیح دي خو ثواب نه لري.

**(بهشتي زېور د زيلعي، ص ۴۴۳، ج ۱ په حواله)**

**۳. په تاقو شيانو د روژې ماتول.**

**۴. د روژې ماتولو په وخت کي ماثوري دعاګاني ويل لکه (اللهم ان لک صمت و علی رزقک افطرت).**

**۵. د پېشلمي په وخت کي د يو شي خوړل، که څه هم يو ګلاس اوبه يا شيدې وي.**

**۶. د پېشلمي ځنډول، خو دومره ناوخته نه چي روژه په شک کي کيږي. (بهشتي زېور د مراقي الفلاح علی حاشيه الطحطاوي، ۳۹۷ مخ په حواله)**

**۷. د چټي او بدو خبرو څخه د ژبي ساتل، (د بې کاره او ناروا شيانو د ليدلو څخه د ستر ګو ساتل لکه پر ديو ښځو ته کتل، فلم کتل او داسي نور حرام کارونه لکه غيبت، درواغ، چغلي او داسي نور...) نو دا ټول په هر حالت کي حرام دي، او ځان ساتل ورڅخه واجب دي او په رمضان المبارک کي وربانديې خاص ټينګار سوی دی.**

**۸. خپلوانو، غريبانو او اړو خلکو ته خيراتونه ورکول، په روغتونونو کي د مريضانو پوښتنه کول او د هغوی سره مالي کمک کول او تر خپله وسه د علم طلب کول، د ديني مدارسو سره مرسته کول، د قرآنکريم په تلاوت، په درود ويلو، په ذکر کولو او نورو عباداتو کي شپه او ورځ تېرول او اعتکاف کول. (کتاب الفقه، لومړی ټوک، ۹۳۷ مخ)**

**۹. په روژه کي د شطرنج په لوبه سره وخت تېرول د روژې ثواب له منځه وړي. (فتاوی دارالعلوم ديوبند، ۶ ټوک، ۳۴۰ مخ)**

## نيت:

**ځکه د نيت ځای زړه دی خو که په خوله نيت وکړي دا هم ښه خبره ده دا چي ووايي: اې الله زه به سبا روژه نيسم او د نيت عربي الفاظ دا دي: (بصوم غد نويت من شهر رمضان).**

## دشپې تياره اودماشوم ډار !

ژ. ل عزم

له تياريکی څخه ډار دماشومانو په وړاندې يوځورونکی اووحشتناک څيز دی ، دشپې په مهال چې کله تياره خوره شي ماشومان د۴نه تر۵ کلونو پورې معمولا له دغه ډول ډاراوبيم سره مخامخ کيږي چې په دې برخه کې دموراوپلارچلند ډېرمهم اوحياتی دي چې هغوی کولای شي په خپل مهربان اوحکيمانه برخوردسره دډاراوويره دغه حالت له ماشوم نه کم اويابيخي له منځه يوسي.

ددغې ويرې اوډار مهم علت هغه تحولات دي چې دماشومانود خيال اوفکرپه وده کې له ۳ کلونوورسته رامنځته کيږي ، يعنې دماشومانودهغې قوې په وزرونوکې چې په دې دنياکې دڅيزونواوشخصيتونوخيالي دنياترسيموي موجوديږي.

ماشومان هغه څيزونه چې دورځې اورڼاپه مهال يې ليدلي اوکتلي وي اولذت يې ترې اخيستي وي ، دشپې دتياري په وخت کې ورته ځان ډيرځله په بل رنګ اوډارونکي شکل اړوي اودتکليف اواذيت باعث يې ګرځي.

دماشومان درک اواحساس اوهغوته پاملرنه چې په رښتياهم هغه واقعي اوريښتونی دی يوه مهمه نکته ده چې موراوپلاراونور مشران ورته ځانګړې توجه واړوي اوداسې نه چې ماشومان له يوې خوادتياريکي ډاراوخيالي بلاووځپلي وي اوله بل لورې يې موراوپلار په داسې تهديدي کلمواوجملوباندې چې ( خجالت وباسه وشرميږه ، ولې ويريږي ) اوداسې نورو..... هغه دچاخبره له بدنه بدتراودويرې اوبيم فضايې په لوی لاس دوچنده وګرځوي ؟

رواني رنځپوهان وايي چې کله موماشوم وليدچې په خوب اويا په تياره کې وډارشو ، بايدموريا پلار يې دغه حالت بې تفاوته پرينږدي ، بلکې ځانته دې ماشوم رانيږدې کړي په ډيرلطف اومرحمت دې ترې وپوښتي چې ګرانه ځويه ، ولې وډارشوي اوڅه وويرولي ، که يې علت ورته ووايه نوورته دې ووايي چې رازه دواړه ورشوچې ته چااوولې وويرولې ، له دغه ډول خبرواوجملوسره دماشوم تسکين کيږي اوډار ترينه څه ناڅه تښتي.

پوهان داهم وايي چې دماشوم په وړاندې دې موراوپلارهيڅکله دانه وي چې له فلانې ځايه ويريږي اويا هغه خونه اوبرنډه درنه اوپيريانی دی ، ځکه په دغه خبروسره دماشوم په مغزوکې دويرې اوبيم يوه څپه ځای نيسي اوترډيره وخته پورې ورسره په ذهن کې موجوده پاتې کيږي.

کچيرې ماشوم خپل خوب وايه بايدموراوپلارورته غوږکيږدي که ښکلې صحنې پکې وي تشويق دې کړي ، که برعکس يانې ويرونکي وي نوهغه دې ورته په ښه انداز تشريح اوتعبيرکړي ، ځکه ۵ کلن ماشوم تفاوتونه اودخوب پيښې ويلای اوتعبيرولی شي ، مګر ۳ کلن ماشوم بيادغه تفاوتونه اوواقعيتونه نشي درک کولای

# آتش در خرمن فرهنگ

جنگ بدون آتش همان تهاجم فرهنگی و استحاله کردن است. اساسا "تهاجم فرهنگی" در مقایسه با تهاجم نظامی یا اقتصادی، دارای ویژگی‌های منحصر به فردی است. تهاجم فرهنگی معمولاً نامرئی و نامحسوس است؛ دراز مدت و دیرپاست؛ ریشه‌ای و عمیق است؛ همه‌جانبه است؛ حساب شده و دارای برنامه و ابزارهای گسترده است؛ گسترده و فراگیر است؛ کارساز و خطرزاست.

علاوه بر این‌ها، "تهاجم فرهنگی" همانند کار فرهنگی، یک کار آرام و بی‌سر و صداست و قربانیان آن بیش‌تر قشر جوان هستند. در تهاجم نظامی، دشمن با تجهیزات و امکانات نظامی وارد معرکه می‌شود، اما در "تهاجم فرهنگی" نیازی به لشکرکشی و هزینه‌های هنگفت نظامی نیست؛ هم‌چنین دشمن در این تهاجم برای تحمیل حاکمیت فرهنگ خود از همه‌ی حربه‌های سیاسی ـ اقتصادی، نظامی، روانی و تبلیغاتی بهره می‌گیرد. در "تهاجم نظامی" تنها بخشی از مرزها و سرزمین‌های مجاور در تیررس مستقیم دشمن قرار می‌گیرد، اما در "تهاجم فرهنگی" سلاح‌های مخرب دشمن تا عمق خانه‌ها پیش می‌رود و ذهن و قلب انسان‌ها را نشانه می‌گیرد. به همین دلیل است که پس از جنگ جهانی دوم، آیزنهاور رئیس جمهور وقت آمریکا اعلام کرده بود که: بزرگ‌ترین جنگی که در پیش داریم جنگی است برای تسخیر اذهان انسان‌ها.

در یک نگاه کلی شیوه‌های تهاجم فرهنگی غرب را نیز می‌توان از دو بعد خارجی و داخلی مورد توجه قرار داد.

در بعد خارجی، مهاجمان با امکانات و موقعیت‌های مختلفی که در مجامع بین‌المللی در دست دارند، از طریق شبکه‌های گسترده‌ی بنگاه‌های تبلیغاتی و سخن‌پراکنی خود می‌کوشند با عناوینی چون نقض حقوق بشر، حمایت از تروریسم، وجود خفقان و سانسور، نبودن آزادی برای زنان و مطبوعات و نویسندگان، جنگ‌طلبی، ماجراجویی و... و با حربه‌های شناخته شده و تکراری، تصویری تحریف شده و ناخوشایند از فرهنگ مقابل در اذهان مردم دنیا ترسیم نمایند و طبیعی است که در این راه، زشت‌ترین و شیطانی‌ترین حربه‌ها را برمی‌گزینند.

در بعد داخلی تهاجم فرهنگی غرب در کشورهای اسلامی به دو شیوه‌ی زیر رخ می‌نماید:

۱. ترویج افکار و اندیشه‌های غیراسلامی و حتی ضداسلامی، تبلیغ افکار التقاطی، تقدس زدایی و توهین به مقدسات، سست نمودن پایه‌های اعتقادی جوانان نسبت به برخی از اصول و آرمان‌ها.

۲ـ تجددگرایی، علم‌زدگی و عقل‌گرایی افراطی، تلاش در راه تطهیر غرب و غرب‌گرایی، بی‌اعتبار نشان دادن علوم و معارف اسلامی به بهانه‌ی عدم تطابق با دانش‌های نوین بشری، طرح جدایی دین از سیاست، ترویج بی‌حجابی و بدحجابی و پوشش‌های مستهجن و خلاف شؤون اسلامی، رواج مدهای غربی و بی‌بند و باری، تهیه و پخش فیلم‌های شدیدا ضد اخلاقی ویدئویی، نوارهای کاست مبتذل از خوانندگان فاسد و توزیع عکس‌های مبتذل در سطح گسترده، تولید و پخش مشروبات الکلی و مواد مخدر در سطح جامعه، چاپ و نشر کتب و مجلات ضداخلاقی، جنایی، عشقی و رمان‌های مبتذل، تشکیل مجالس لهو و لعب و...، مشتی از خروارها توطئه‌ی دشمن است. ابزار تهاجم فرهنگی تنها محدود به موارد فوق نیست، بلکه تمام موارد فرهنگ‌های مکتوب، شفاهی، عمومی و تصویری نیز از ابزارهای دیگر این تهاجم هستند. فرهنگ غربی با استفاده از ابزار فوق تخریب فرهنگ اسلامی را مد نظر قرار داده است. مواردی از قبیل تشکیک در حقانیت دین اسلام، انتشار کتاب‌های ضد دینی مانند آیات شیطانی، نفی مقدسات اسلامی و نیز تحدید دین و تلاش برای حذف دین از عرصه‌ی اجتماع از این موارد به شمار می‌آید.

( افغان تلکس )

# دحساس سیاسي سفرپیل!

## دذهانت اوفراست لویه ازموینه!!

ابو ظهیر.................................

بالاخر دعربي خلیج ،قطرهېواد په پلازمېنه "دوحه" کې داسلامي امارت سیاسي دفتر دښوشاندارومراسموپه ترڅ کې رسماً پرانستل شو، دپرانستلو څخه لږې شیبي وروسته هغي امریکا چې تل به یې دغرور اوکبرپه لهجه داسلامي امارت دجهادي اوسیاسي موقف له منلو انکار کاواوهمیش یې دخپل عصري ځواک په ژبه خبري کولي اعلان وکړ : "چې طالبانو سره دمخامخ خبرولپاره خپل مرکچیان دوحي ته لیږي!!اوباما هم چې د"جی ایټ" هېوادونو په غونډه کې و،داسلامي امارت دسیاسي دفتر پرانستل یې دمفاهمت په لور دلومړي ګام په توګه یاد کړ".

دسیاسي چارو دکتونکو په اند:دطالبانو او امریکایانومخامخ ناسته یا په قطر کې داسلامي امارت په نوم دسیاسي دفتر رسماً پرانستل کوم معمولي بری یاپرمختګ ندی!! بلکې دایو حیراونونکی بری او تاریخي پرمختګ دی !پربل سپیناوي : دا یو له ستونزو څخه ډک سیاسي سفراو حساس دیپلوماتیک پړاوپیل دی، چې په ترڅ کې یې د دوه مخالفو لوریو (امریکا دمتحده ایالات اودافغانستان اسلامي امارت ) استازي دمخامخ ناستي او خبرو دپیل لپاره ځانونه چمتوکوي !

داسلامي امارت دسیاسي دفتر په نوم ددغه دفتر رسمي پرانستنه واقعاپه سیاسي اودیپلوماتیک ډګر کې لوی بری اولاسته راوړنه ده ،څنګه چې اسلامي امارت دهېواد دننه څرګند حقیقت دی او په تیرو دولس کلو کې دامریکا دتیري په وړاندې دجهاد درهبری،دمقاومت د تنظیمولو او امریکا ته دشکست ور کولوویاړ ور په برخه دی،په قطر کې ددفترپرانستلو بهیر وښوده چې له هېواده بیرون هم اسلامي امارت دیوه لوی سیاسي واقعیت په توګه ځان منلی ! په باورسره دغه بدلون به راتلونکې کې دهېواد دننه دسولي اوثبات په راوستو اوټینګښت مثبت تاثیرات ولري.

که څه هم دې روان بهیر ته په بشپړه توګه شفاف اودباور وړ جریان نشي ویل کېدای ولې ددواړو لوریو ترمنځ بې باوري هیڅکله کمه شوې نده اونه ددواړو لوریو ترمنځ دپاخه باور او اعتماد فضا شتون لري ؛ له دې وجې داپوښتنه تراوسه بې ځوابه پاتې ده چې ددواړولوریو ترمنځ دکېدونکي تفاهم اومصالحت بڼه به څه وي ؟خو بیاهم ددغه دفتر له لاري اسلامي امارت ته په نړیواله توګه دخپل سیاسي موقف دتشریح اوروښانه کولو فرصت په لاس ورتلل په سیاسي ډګر کې یوه لویه لاسته روړنه اوسیاسي بریاضروروده !اوپاتې شوه داپوښتنه چې ایا روان بهیر واقعبینانه دی ؟یا په افغانستان کې دروان ناورین دپای ته رسولو سره به مرسته وکړي کنه ؟ په دې اړه څه ویل ګران اوله وخت وړاندې دي !ولې تراوسه چې په کومه بڼه دقطر بهیر روان دی، هغه ته په کتو د کومي لوي خوشبینۍ تمه اوتوقع یا په اړه یې وړاندوینه کول انتظار غواړي !

ولې ښکاره ده چې دقضيې ددواړو طرفينو (د امريکامتحده ايالات او اسلامي امارت ) ترجيحات سره ټکر او توپير لري !البته دسياستوالو په اند: دافهام اوتفهيم ددغه بهير که څه هم متزلزل دی دتعميري اهميت نه يې انکار ناشونی دی دهغوئ په وينا: ترټولو دپام وړ تعميري بدلون چې په دوحه کې داسلامي امارت ددفتر پرانستلو وروسته ځرګند او وليدل شو ، هغه دقضيې ددواړو لوريو (اسلامي امارت اودامريکا متحده ايالات) مخامخ خبرو اومذاکراتو ته رضاکېدل ديوه داسې پيغام اشاره ده چې ګواکې دواړه لوري دجنګ دپای ته رسولو په لور ګوري.. !!

هو! دامريکا يوشمېر ځواکونه چې له افغانستانه دونلو پر لار دي ،خو د۲۰۱۴ز ترپايه هغه (امريکا) پخپل ټول سياسي اوپوځي توان به هڅه وکړي چې افغانستان کې دخپلو پوځي هډو جوړولو ته لاره هواره کړي ، که په کې ورته برى ور په برخه شو خوښه...؛ اوکه نشو هغه( امريکا) د۲۰۱۴ز ترپايه خامخاخپل ټول ځواکونه باسي ... خو دوتلو څخه وړاندې ضرور ځانته داوړو پوزه جوړوي چې : په راتلونکي کې بايد ديوولسم ستمبر پشان بله پېښه تکرار نشي !! ځوخپلو خلکوته ووايي چې :افغانستان نور ددوئ( امريکايانو ) لپاره ګواښ ندی ...پربل سپيناوي امريکابه له اسلامي امارت څخه ددې تضمين اووعده وغواړي :چې په راتلونکي کې دافغانستان خاوره ددوئ دګټو پر ضد ونه کارول شي ! داسلامي امارت دريځ ته په کتو ويلای شو چې هغه به په اسانه داتضمين اوژمنه و کړي چې دافغانستان خاوره به دامريکا په ګډون دهيڅ کوم بهرنې هېواد په ضد نه کارول کېږي البته ددې ژمني په بدل کې اسلامي امارت خپله دا لويه غوښتنه ( چې امريکا دې دافغانستان ازادي اومني ! خپل ټول ځواکونه دې سملاسي وباسي !دافغانستان ناروا اشغال دې پای ته ورسوي) په امريکاهم اومني ! دځينو کتونکو په اند:بالفرض که مذاکرات وهم نشي امريکا د۲۰۱۴ ترپايه داسلامي امارت داغوښتنه پوره کوي اوخپل ځواکونه و باسي !

دنړيوالو چاروڅېړونکي د متقابلوخواوو لپاره داغوره اوضروري بولي چې نړيواله ټولنه بايد رسماً اسلامي امارت(طالبان) دقانوني اوحقوقي پلوه دمذاکراتو دبرخي په تو ګه اومني ځوباور اواعتماد ته لار هواره شي ،ولې د اسلامي امارت له لوري ددفتر پرانيستني په ورځ دوه داسې مهمې خبرې دنړۍ په وړاندې راغلي چې امريکا اونړيوالې ټولنې دهغو غوښتنه کوله ،لومړی: اسلامي امارت تضمين ورکوي چې دافغانستان خاوره به دبهرنيو هېوادونو پر ضد نه کارول کېږي ! دويم :ظروفو او شرائطو ته په پام دافغاني ډلوسره دتفاهم هوډ ځرګندول ،اوس له دې وروسته دنړيوالو مسؤليت دی چې په دې اړه مسؤلانه ګام پورته کړي اواسلامي امارت دحقوقي پلوه رسما دمذاکراتو دبرخي په تو ګه اومني ...

څنګه چې وړاندې په پيل کې اشاره وشوه چې دايوحساس اوله ستونزو ډک سفر پيل دی ،طبعي ده چې په وړاندې يې ګڼ خنډونه او موانع جوړ شي ، خوددې باوجود دايقيني برېښي چې دمذاکراتوبهير پيليدونکی دی! ولې دامريکا په وړاندې ددې پر ته بله لار پاتې نده ، خامخابه هغه دخپلو ځواکونو دانخلاء لپاره په يوه فارموله عمل کوي ، وړاندې په ويت نام کې چې کله امريکا دشکست سره مخ شوه ، دويت نام دازادۍ غوښتونکوسره مذاکراتو ته کيناسته ،دهغو مذاکراتو په ترڅ کې امريکادويت نام ازادي اوخپلواکي اومنله ،شمالي اوجنوبي ويت نام بيرته سره يو ځای شول ،افغانستان کې هم په ورته تو ګه امريکادهغسې حالت سره مخ ده نو خامخاده چې امريکا دافغانستان ازادي اومني او ترې خپل ټول ځواکونه وباسي!

دکرزي رژيم چې په اوسني بهير کې کومه فعاله ونډه نلري هغه له دې امله زيات خوابدی دی ،چې په قطر کې داسلامي امارت په نوم دسياسي دفتر پرانستل او هلته داسلامي امارت دبيرغ پورته کيدل هسې نه دمذاکراتو په نوم دامارت دا دفتر دسياسي نماينده ګۍ اوسفارت بڼه واخلي ! بل که مذاکرات په کاميابۍ ترسره شول طبعي ده چې په نتيجه کې يې دپوځي ډګر ترڅنګ دکرزيانو سياسي زوال هم پيل شي دغه وجه ده چې کرزی له لومړي سره دقطر په جريان خوښ نه دی اوهڅه کوي چې له افغانستانه داشغالګرو ځواکونو دوتلو په وړاندې خنډونه پيدا کړي او هغوئ د۱۲کلو جعلي لاسته راوړنو په نوم دخپل ځان ددفاع لپاره نورهم تم کړي ځود ځان دبقا لپاره افغانستان دځونورو کلولپاره داشغال چوپړ ته ټيل وهي .

د کتونکو په وینا: اگر که دقطر جریان ددغسي یوشمېر ستونزو سره لاس اوگریوان ښکاري ، خو د سفارتي پلوه دیوه قوي بدلون نښه ضرور دی ، چې هدف یې د۱۲کلن جنگ پای ته رسول دي

خو ددې هدف په اړه دامریکا کردار ډېر شفاف نه برېښي ،اوداباور ډېر کم دی چې امریکا دې دسولي دواقعبینانه بهیر په رامنځته کولو کې اخلاص اوښه نیت ولري له دې وجې داندیښنه شته چې هسې نه روان جنگ دناورین کوم بل پړاو ته داخل شي ؛ځکه دامریکا تاریخ په دې شاهددی چې هر کله یې په پوځي ډگر کې خپله ماته لیدلي ،نو مقابل لوری یې دمذاکراتو اوخبرو په لومه کې ښکېل کړی ، دفلسطین شخړه ددې ښکاره مثال دی ، هر کله به هم هلته جهادي ځواک پیاوړی شو اود اسرایل غاصب وجودبه یې ونګاو، امریکا به دفلسطین ازادۍ تحریک (الفتح) اویاسر عرفات په داسې جعلي ستونزو کې ښکېل کړل چې له امله به یې په اسرایل باندې فشار کم او داصلي ستونزې نه په بل لوربه یې دهغوی پام واړوه ،دادی نن دنیمي پیړۍ نه زیاته موده وشوه چې الفتح هغسي دامریکایانو په لومو کې ترلي او دفلسطین مظلوم ولس دوسپنو نیني چیچي ، هو! دابه گرانه وي چې امریکایان خپل دغه جعلي فرمول دالفتح پشان په طالبانو هم تطبیق کړي اوهغوئ دې هم پخپلو لومو کې هغسي ښکېل کړي ، ولې دطالبانو(اسلامي امارت) سیاسي نظریه یوائې دخاوري ازادول ندي ،بلکې ددې ځخه وړاندې هغوئ دایمان اواسلام دفاع ته ژمن دي ،دخاوري ازادي یې دویم هدف دی ، هرچې الفتح دی دهغوئ لومړۍ بنسټېزه نظریه دفلسطین دخاوري ازادول دي نه داسلام او ایمان ځخه دفاع! تر دې پورې چې له اسلام اوایمان ځخه ددفاع نظریه دهغوئ په منشور اومرام پاڼه کې هم نشته ! دیته پر پام ویلای شو چې دهغې جعلي نسخې دلته ازمایل به دامریکایانو یوه بله تیروتنه او اشتباه وي .

بل هر څومره چې دانخلاء موده رالنډیږي ،په پوځي ډگر کې داسلامي امارت جنگي لاسته راوړني پراختیا مومي ، مجاهدین دامریکا اوناټو په مهمو اهدافو دقیق عملیات ترسره کوي چې تازه بېلگه یې کابل کې دسي ای اې په مرکز( اریانا هوټل)اوپه ارگ دسې شنبې ورځې فدایي بریدونه دي ، که دغوبریدونو لږ نوروخت نیولی وای ، کرزی اومشاورینو یې له ارگه کډې بارولو ته ملاوې تړلې وي! !ښکاري چې داسلامي امارت نظامي ځواکونه دنویو جنگي تاکتیکونو او تجربو سره ښه اشناشوي او کولی شي چې دډېرو کلکو امنیتي کمربندونو ځخه په بري سره تیراوپه مهمو نقاطوبریدونه وکړي داچې ددې ترځنگ په سیاسي ډگر کې داسلامي امارت یوفعال سیاسي ټیم په قطر کې هم شتون لري ،هلته دامریکا په گډون دمختلفو جهتونو سره پر افهام اوتفهیم بوخت دي ،دا په گڼو محاذونو داسلامي امارت د توامندۍ او عالي حوصلي ښکارندوي کوي .

داسمه ده چې سیاسي جریان شاید ډېر وخت واخلي اوپکې دمایوسۍ اوناهیلۍ گڼ مناظر هم مخ ته راشي ، ډېر ځلي ددواړو لوریو ترمنځ بې باوري اوج ته ورسي ، څوځله دخبرو اومذاکرو بهیر ټکان وخوري دتعطل ، ځنډ او توقف ښکارشي خو داخبره د"نوشته دیوار" په



مصداق ده: چې بالاخربه دغه له ستونزو ډک سفر یوه منطقي انجام اوپړاو ته رسي او په نتیجه کې به یې دامریکااوناټو عسکر له افغانستانه ووځي ،افغانستان به بیا دازادۍ او استقلال څښتن شي ...

چې په دې لړ کې ربښتیاهم داسلامي امارت دسیاسي استازو او مرکچیانو دقوي ذهانت اوفراست لویه ازموینه پیلیدونکی ده ،چې هغوئ دپوځي ډگر په څېر له سیاسي میدانه د ابرومندانه بري په بدرگه وتلی شي کنه ؟،نړیوال !افغانان !اوتاریخ ! درېواړه په ډېره ورخطائي دهغوئ کردار ته انتظار لري اوپه څېر ؛څیریې ځاري !! چې دروان خونړي گرداب له څپو هغوئ خپل هېواد او ولس ته دنجات ور کولو په غرض ،زمکنیو حقایقو اوواقعیتونو ته پرپام څه پرېکړي او څه تصمیمونه نیسي ؟!

ولې څرگنده ده امریکا غواړي چې له افغانستانه خپل یوائې ۷۵فیصده پوځیان وباسي ، باقي ۲۵فیصده پاتې کړي! اود۲۰۱۴ز ترپایه دهغوئ دپاتې کېدو لپاره لار هوارول په پام کې لري له دې وجې

اړ تیاده چې امارت یې دمخنیوي لپاره پر دواړو محاذونو (سیاسي اوجهادي) دمؤثر کردار ترسره کولو لپاره آماده ګۍ په پام کې ونیسي، په ځانګړي توګه دجګړې نشدید ولو لور ته زیاته پاملرنه وکړي، ځکه د مذاکراتو په پلمه شونی ده چې امریکا داسلامي امارت په مصروفولو سره دکومې ستري دسیسي اوتوطئي پلان ولري او جوته ده چې ډېر ځلي جعلي جریانونه رامنځته کول دپایلو په اعتبار اودعواقبو له لحاظه دلوی جنګ نه هم لوی (جنګ) ثابت شوي...!

ددې باوجود بیاهم ډېری کتونکي باور لري که دواړه لوري په واقعبینانه توګه دیو اوبل موقف، دریځ اوغوښتنو ته غوږشي دیو اوبل په ترجیحاتو ځانونه خبر کړي نودتفاهم لپاره ډېري امکاني لاري راونلی شي، اسلامي امارت پخپله اعلامیه کې هغو ټولو ته اندیښنو ته دځواب ویلو هڅه کړې چې نړیوال یې داسلامي امارت په اړه لري او په څرګندوتوریو کې یې دا روښانه کړي چې دخپلي خاوري دازادۍ اوخپلواکۍ په اړه تضمین غواړي! او دنړۍ دهیڅ



هېواد دننه دپر اختیا غوښتني اراده نلري، هم دا راز دهیڅ بهرنې هېواد پر ضد چاته دخپلي خاوري کارولو اجازه نه ور کوي اونه ور ته دبل کوم هېواد لخوا په افغانستان تیری اویرغل دزغم وړ دی ... له دې وروسته نور مسؤلیت د نړیوالو په غاړه دی، باید هغوئ په اخلاص اوښه نیت راوړاندي شي او اسلامي امارت دیوه زمکني واقعیت په توګه او مني هم له افغانستانه دناروا اشغال په پای ته رسولو کې له افغان مظلوم ولس سره مرسته اوهمکاري وکړي!

# د تاریخ دردوونکی باب

په کال: 1938 میلادي کې سیکولر ترکي ورځپاڼي (جمهوریت) د ښکلا د ملکي لومړی سیالي اعلان کړه، او کریمان خالص نومي ترکي پیغله د ترکي دښایسته ملکه ونومول شوه، په همدي کال کې په بلجیک کې د سبا spaa په ښار کې د ښکلا سیالي ترسره شوه، څو د نړۍ په سطحه دښکلا ملکه وټاکي، په دي سیالي کې داته ویشت هیوادونو پیغلو برخه واخیستله، چې کریمان خالص هم پکي وه.

په دي وخت کې د پریکړه کونکي ډلي مشر په دي اړه څو خبري وکړې، هغه خبري دلته را اخلو او ګورو چې اروپایانو له عثماني خلافت نه څومره کرکه کوله اوپه ټولیزه توګه یې اسلام ته څومره د دښمني په سترګه لیدل، هغه وویل د ټولني درنو غړیو! نن ټوله اروپا د نصرانیت دبریالیتوب ورځ نمانځي، هغه اسلام چې په نړۍ یې څوارلس سوه کاله واک چلاوه نن پای ته ورسید، د ترکي د ښکلا ملکه کریمان خالص زموږ پر وړاندي ولاړه ده او داد اوسنی مسلماني میرمني نمونه ده، د مسلماني سخت دریځي میرمني لمسۍ نن زموږ پر وړاندي په (مایو ه) کې ولاړه ده، موږ باید اعتراف وکړو چې دا پیغله زموږ دبریالیتوب تاج ده، په تیرو شپو کې یو وخت دترکي عثماني خلیفه سلیمان القانوني له یوډول فرانسوي رقص اونڅا نه په تنګ شوی و هغه مهال دعثماني خلافت دسیمي پولي له فرانس سره نښتي وې نو هغه فرانسویانو ته ویلي و چې دا ډول نڅا باید بنده کړل شي ځکه موږ ویریږو زموږ په خلکو اغیز ونکړي، داستاسو په مخکي ولاړه نجلی دهغه مسلمان سلطان لمسۍ ده چې په بدن یې له (مایوه) پرته بله جامه نشته، اوله موږ غواړي چې بدن یې خوښ کړو، موږ ټول په دي امید یو چې دمسلمانو پیغلو راتلونکی به زموږ په لاس کې وي. نود اروپا دبریالیتوب په ویاړ لوښې پورت ه کړئ.

هو کي! نن د ډیری مسلمانو نجونو برخلیک داروپایانو اولویدیځوالو په لاس کې ده او چې څه ډو لباس یا په څه ډول د بدن لغړول دهغوی ورته خوښ وې دوی یې غوره کوې...
فالی الله المستکي

# اهل سنت والجماعت

اهل سنت والجماعت

# یا ناجیه فرقه

لومړۍ برخه

مفتي شاهد حقاني

دانسانیت لاربنود او د مسلمانو ستر قاید حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم لا څوارلس پیړۍ دمخه ویلي و، چې بنی اسرائیل په (۷۲) فرقو باندې ویشل شوي وو اوزما امت به په (۷۳) فرقو یا لویوډلو وویشل شي، ټولې به دوزخ ته ځي، یوازې یوه فرقه به جنت ته ځي ،صحابو وله رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وپوښتل، چې دا ناجیه فرقه به څوک وي ؟یعني کوم صفات او خصوصیات یا نښې به لري ؟نوده ص ورته وویل (ما أنا علیه واصحابی )یعني هغوئ به په هغه لارې یا طریقې باندې خپل ژوند کوي ،چې زه اوزما ملګري پرې یو ،پدې باب کې مختلف روایات راغلي، په ځینو کې یې داسې دي، چې بنی اسرائیل (۷۱) فرقې وې، په ځینو کې روایاتو کې وایې چې بني اسرائیل (۷۲) فرقې وې ،دنصاراو وپه هکله هم همداسې روایات راغلي چې دیهودو په اندازه ډلې پکې جوړې شوي وي ،چې مختصرا به یې دلته ځینې روایات رانقل کړو خو دمضمون دحوصلې دکمښت له امله یې له ټولې ژباړې صرف نظر کوو یوازې دحوالو په راوړلو به بسنه کوو ،چې کله ناکله به یې دضرورت په پام کې نیولو سره خلص مطلب هم لیکو او ژباړه هم.

(حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ عَنْ خَالِدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو عَنْ أَبِى سَلَمَةَ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « افْتَرَقَتِ الْيَهُودُ عَلَى إِحْدَى أَوْ ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً وَتَفَرَّقَتِ النَّصَارَى عَلَى إِحْدَى أَوْ ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِى عَلَى ثَلاَثٍ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً ».سنن ابی داود ۴جزءص۳۲۳ /پورتني روایت کې دیهودو اختلاف ته اشاره وشوه ،چې دوئ (۷۱) یا (۷۲) ډلې وي ،خورسول الله صلی علیه وسلم فرمایې چې زما امت به (۷۳) فرقو باندې وویشل شي ،چې وروستنیو روایاتو کې به ذکر شي ،چې ټولې به دوزخ ته ځي صرف یوه به جنت ته ځي ، هغې ته ناجیه فرقه وي او هغه به، هغه وي چې زه اوزما صحابه پرې دي .

دې بل روایت کې دراوي دشک په بناء داسې بیهقي رانقل کړي دي چې: **21429**- وَقَدْ أَخْبَرَنَا أَبُو عَلِىٍّ الْحُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الرُّوذْبَارِىُّ فِى كِتَابِ السُّنَنِ أَنْبَأَنَا أَبُو بَكْرٍ : مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ عَنْ خَالِدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو عَنْ أَبِى سَلَمَةَ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ رَضِىَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- :« افْتَرَقَتِ الْيَهُودُ عَلَى إِحْدَى أَوْ ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً وَتَفَرَّقَتِ النَّصَارَى عَلَى إِحْدَى أَوْ ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِى عَلَى ثَلاَثٍ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً ».

{ق} قَالَ أَبُو سُلَيْمَانَ الْخَطَّابِىُّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِيمَا بَلَغَنِى عَنْهُ قَوْلُهُ: « سَتَفْتَرِقُ أُمَّتِى عَلَى ثَلاَثٍ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً ». فِيهِ دَلاَلَةٌ عَلَى أَنَّ هَذِهِ الْفِرَقَ كُلَّهَا غَيْرُ خَارِجِينَ مِنَ الدِّينِ إِذِ النَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم- جَعَلَهُمْ كُلَّهُمْ مِنْ أُمَّتِهِ وَفِيهِ أَنَّ الْمُتَأَوِّلَ لاَ يَخْرُجُ مِنَ الْمِلَّةِ وَإِنْ أَخْطَأَ فِى تَأْوِيلِهِ قَالَ الشَّيْخُ رَحِمَهُ اللَّهُ وَمَنْ كَفَّرَ مُسْلِمًا عَلَى الإِطْلاَقِ بِتَأْوِيلٍ لَمْ يَخْرُجْ بِتَكْفِيرِهِ إِيَّاهُ بِالتَّأْوِيلِ عَنِ الْمِلَّةِ فَقَدْ مَضَى فِى كِتَابِ الصَّلاَةِ فِى حَدِيثِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ فِى قِصَّةِ الرَّجُلِ الَّذِى خَرَجَ مِنْ صَلاَةِ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ فَبَلَغَ ذَلِكَ مُعَاذًا فَقَالَ مُنَافِقٌ ثُمَّ إِنَّ الرَّجُلَ ذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- وَالنَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم- لَمْ يَزِدْ مُعَاذًا عَلَى أَنْ أَمَرَهُ بِتَخْفِيفِ الصَّلاَةِ وَقَالَ أَفَتَّانٌ أَنْتَ لِتَطْوِيلِهِ الصَّلاَةَ وَرُوِّينَا فِى قِصَّةِ حَاطِبِ بْنِ أَبِى بَلْتَعَةَ حَيْثُ كَتَبَ إِلَى قُرَيْشٍ بِمَسِيرِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- إِلَيْهِمْ عَامَ الْفَتْحِ أَنَّ عُمَرَ رَضِىَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ دَعْنِى أَضْرِبُ عُنُقَ هَذَا الْمُنَافِقِ فَقَالَ النَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم-: « إِنَّهُ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا ».

وَلَمْ يُنْكِرْ عَلَى عُمَرَ رَضِىَ اللَّهُ عَنْهُ تَسْمِيَتَهُ بِذَلِكَ إِذْ كَانَ مَا فَعَلَ عَلاَمَةً ظَاهِرَةً عَلَى النِّفَاقِ وَإِنَّمَا يَكْفُرُ مَنْ كَفَّرَ مُسْلِمًا بِغَيْرِ تَأْوِيلٍ.(سنن بيهقي لابى بكر بيهقي جزء ص۱۱۰

دې لاندیني حدیث شریف کې هم رسول الله صلی علیه وسلم ددې امت اختلاف او تفرقه له بني اسرائیلو سره مشابه کړې ده، چې دتشبیه دغبتلتیا لپاره یې ددوو پښو سره شباهت ورکړی ،لکه څنګه چې دوه پښې سره برابرې په یوه کت ایښې وي اومخکې وروسته پکې نوې ،دارنګه ددې وروستي امت اختلافات به هم لکه دیهودوغوندې له هغوئ سره موازي وي اوښه ډیر به وي ،خودې امت کې به یوه یوه فرقه یا ډله خپله بیړۍ دنجات ساحل ته رسوي اودا ډله به ددوزخ نه په امن وامان کې وي، هغوئ به هغه سنت پرځای کوي ،چې هغه حضرت پیغمبرص او اصحابو پر ځای کړي دي ، وروستنیو مباحثو کې به انشاءالله تعالی راشي چې هغه ناجیه ډله به (اهل السنت والجماعت) وي ،چې ډیرو محققینو اوپیاوړیو علماوو په نزد نن سبا ددې (ناجیه) فرقې یا اهل سنت والجماعت مصداق دمذاهبو اربعه

ووپیروان اوهغه څوک دي چې اسلافو ته درناوی لري ،دمتقدمینو او سلفو صالحینو اقوال اومعمولات د ځان لپاره دهدایت اونجات لاره بولي اودهغوئ افعال او اعمال لدې امله سنت بولي چې په باب یې جوت ارشادات شتون لري ،په حقیقت کې دصحابوو اعمال اودهغوئ آثارو باندې عمل کوي ، دپورته موضوع په باب دا حدیث ترمذي روایت کړی چې فرمایي: حدثنا محمود بن غیلان

أخبرنا أبو داود الحفرى ، عن سفيان عن عبد الرحمن بن زياد بن أنعم الافريقي ، عن عبد الله بن يزيد عن عبد الله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "ليأتين على أمتى ما أتى على بنى إسرائيل حذو النعل بالنعل حتى إن كان منهم من أتى أمه علانية لكان في أمتى من يصنع ذلك. وإن بنى إسرائيل تفرقت على ثنتين وسبعين ملة ، وتفترق أمتى على ثلاث وسبعين ملة كلهم في النار إلا ملة واحدة ، قال من هي يا رسول الله ؟ قال: ما أنا عليه وأصحابي ". هذا حديث حسن غريب مفسر ، لا نعرفه مثل هذا إلا من هذا الوجه.رواه الترمذى الجزء ۴ص ۱۲۴

له بده مرغه چې مسلمان امت نن سبا دفتنو او اختلافاتو په ګرداب کې ولاړدی اوپرځینو هغوئ یې هم دتعصب اوحسد غبار پروت دی، چې دپوهې اوعلمیت لویې لویې دعوې هم کوي ،دخبرو پروخت به یې وموميي چې کله به مفسر شي ،کله محدث ،کله فقیه او کله هم دعصرلوی مفتي وي !! خوچې راویې سپړې او لړیې علمي ارزونه وکړي ،په خبرو کې به درته دا سې یو څوک ښکاره شي چې دعوی به یې له حقیقت سره اړخ نه لګوي ،دلویو لویو علماوو سره به دعوې دنګلې کوي اودهغه دعلمیت او روحانیت ددرناوي پرځای به ترې خبرو کې ډیره بې احترامې کیږي ،له بده مرغه مسلمانان نن سبا فروعي اختلافاتو کې دومره ورننوتې دي ،چې دهغه چا دښمني ترې پاتې ده، چې هغوئ ددوئ ددین او ایمان دښمنان دي اودا اسلام سره له ازله پرعداوت روږدي دي ،دعقایدو په برخه کې هم دمسلمانو تر منځ ظاهرا ډیر اختلافات کتل کیږي ،یوبل ته دبحث او مناقشې پروخت کله دمشرک کله دمبتدع نسبت کوي ،بل طرف بیا دمؤحد

اومتبع سنت دعوی کوي ،ځیني خلک دحنفیت دعوی کوي خو داحنافو او حنفیت له بشپړو مذهبي مسئلو او اقتضا أتونه هم نـاخبره وي ،آن دمتقدمینو او متأخرینولـه فتواوونـه چې دځینو مسائلو په باب یې هغه وخت ورکړي اوبیا تـرې دوخت وزمان په تیرېدو صرف نظرشوي هم ناخبره دي ،ځیني خلک له مذهبه داسې ویرېږي ،لکه یو څوک چې له سخت دښمن نه په ډارکې وي، نوربیا دمذهب له پاکي کلمې نه غلطه ګټه اخلي او دخپل ځان په ګټه یې استعمالوي ،چې ددواړو لوریو نـه داعتدال اوحقې لارې مونـدل ورک شـوي او دافـراط او تفریط پـه ناروغی اختـه دي ،ځینې نوربیا لکه دخوارجو پـه معاصیو اوګناهونو مسلمان تـه کافراو مباح الدم وایې ،پـه یوه کوچنی ګناه یې هم داسلام لـه ارتې دایرې نـه وباسې، دتکفیرپر عقیده ځان ته نجات او نورخلکوته هلاکت غواړې ،پداسې حال کې چې ایمان تصدیق بالقلب او اقراباللسان ورته شرط دی، اعمال په ایمان کې ندې داخل بلکې دایمان پـه تکمیـل او تنقیـص کـې خـارجي رول لـري ،پـه (عقیـدة الطحاویـه ) کـې داسـې راغلـي چـې: وَالْإِيمَانُ: هُوَ الْإِقْرَارُ بِاللِّسَانِ، وَالتَّصْدِيقُ بِالْجَنَانِ. ......وتعریـف الطحـاوي للإيمـان بقولـه (هُوَ الْإِقْرَارُ بِاللِّسَانِ، وَالتَّصْدِيقُ بِالْجَنَانِ) هذا تعريفٌ بالمقارنة مع ما سبق فيه قصور، وهو موافقٌ لما عليه الإمام أبو حنيفة رحمه الله وأصحابُه، فإنهم لم يجعلوا العمل من مُسَمَّى الإيمان، وجعلوا الإيمان تصديق القلب وإقرار اللسان، وجعلوا الأعمال زائدة عن مُسَمَّى الإيمان مع كونها لابد منها ولازمة للإيمان.(شرح العقيدة الطحاويه صالح آل شيخ۱/۴۰۲ص ).

پـه کتـاب (مسئلة الايمـان للشـبل ) کـې د(ماتریـده وو )نظرداسې رانقل کړی : (قول الماتريدية ورواية عن أبي حنيفة: بأن الإيمان تصديق القلب، أما الإقرار باللسان فركن زائد فيه ليس بأصلي، حيث يسقط بالإكراه ونحوه. (مسئلة الايمان للشبل )جزء ۹ص ).

پـه (شرح کتاب غایة البیان شرح ارسلان )کې داسې لیکلـي چـې: (والنطـق بالشـهادتين اعتبـرا أي أن النطـق بالشهادتين معتبر لصحة الإيمان للخروج من عهده التكليف به ممن قدرا أي من القادر عليه إن صدق القلب إذ الإيمان تصديق القلب بما علم ضرورة مجيء الرسول به من عند الله كالتوحيد والنبوة والبعث والجزاء وافتراض الصلوات الخمس والزكاة والصوم والحج والمراد بتصديق القلب إذعانه وقبوله ولما كان تصديق القلب أمرا باطنا لا اطلاع لنا عليه جعله الشارع منوطا بالشهادتين وهل النطق بالشهادتين شرط لإجراء أحكام المؤمنين في الدنيا من الصلاة عليه والتوارث والمناكحة وغيرها داخل في مسمى الإيمان أو جزء منه داخل في مسماه قولان ذهب جمهور المحققين إلى أولهما وعليه من صدق بقلبه ولم يقر بلسانه مع تمكنه من الإقرار فهو مؤمن عند الله وهذا أوفق باللغة والعرف وذهب كثير من الفقهاء إلى ثانيهما وألزمهم الأولون بأن من صدق بقلبه فاخترمنه المنية قبل اتساع وقت الإقرار بلسانه يكون كافرا وهو خلاف الإجماع على ما نقله الرازي وغيره لكن يعارض دعواه قول الشفاء الصحيح أنه مؤمن مستوجب للجنة حيث أثبت فيه خلافا وخرج بقوله ممن قدرا العاجز لخرس أو سكتة أو إخترام منية قبل التمكن منه فيصح إيمانه وأما الإسلام فهو أعمال الجوارح من الطاعات كالتلفظ بالشهادتين والصلاة والزكاة وغير ذلک، (شرح کتاب غاية البيان شرح ارسلان جزء۱ص۸.

) ددې پورتني عبارت نه څوخبرې په ډاګه شوي یوداچې جمهورعلمـاءوایي چـې ایمـان تصـدیق بالقلـب دی او اقراربالسـان ورتـه شـرط او شئ زائد دی ،او اسلام عمل بالجوارح دی لکه صلوة صوم وغیره ......

همدارانګـه دې بـاب کـې چـې :اعمـال د(اشـاعرو او ماتریدیه وو )په عقیده ، ایمان کې ندي داخل ،بلکې دایمان مکملات بلـل کیـږي، دامـام ابوحنیفـه رح اونـورو پـه وینـا( صاحب المسايرة على المسايرة) داسې نقل کړی: ... **4**-ويقول صاحب المسايرة على المسامرة في ذكر الخلاف في الإيمان: **4**- " أن الإيمان: تصديق بالقلب واللسان ...، وهو منقول عن أبي حنيفة ومشهور عن أصحابه وعن بعض المحققين من الأشاعرة ".

..... وذكر أنهم فرقوا بين التصديق والإقرار بأن: "التصديق ركن لا يحتمل السقوط أصلاً، والإقرار قد يحتمله, وذلك في حق العاجز عن النطق و المكره "(1)

ثم ذكر لهم دليلين:

أ- أن هذا "هو الاحتياط بالنسبة إلى جعله شرطاً خارجاً عن حقيقة الإيمان".

ب- أن النصوص الدالة عليه من نحو قوله عليه الصلاة والسلام: "أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا: لا إله إلا الله فمن قال: لا إله إلا الله فقد عصم مني نفسه وماله إلا بحقها وحسابه على الله" أخرجه الشيخان.

قال: "ويجاب من طرف جمهور الأشاعرة عن الحديث بأن معناه أن قول لا إله إلا الله شرط لإجراء أحكام الإسلام، حيث رتب فيه على القول الكف عن الدم والمال، لا النجاة في الآخرة الذي هو محل النزاع "(2).(ظاهرة الارجاء فى الفكر الاسلامى جزء /٩٧ص).

ددې ټولو عباراتونه معلوميږي چې ايمان تصديق قلبي دی او اقرارباللسان ورته شرط دی، اعمال دايمان په رکن اصلي کې ندي داخل، البته داسې هم نده لکه دمرجئوعقيده چې اعمال بيخې معطل پريږدي، بلکې داهل السنت والجماعت اشاعره اوماتريده ووکې به هيڅوک داسې نوې چې اعمال دايمان په رکن کې داخل کړي، اوداسې به هم څوک نوي، چې اعمال مهمل پريږدي، بلکې اعمال که دايمان رکن يا شرط نه شميرې، نودايمان دمکملاتونه يې ضرورشميري، خوچې دحقيقت ژوروته ورکښته شو اوداهل سنت والجماعت داماماتولکه امام ابوحنيفه رح، امام شافعي رح اوعاموعلماووعقايدپدې برخه کې رانقل کړنوو به ګوروچې داسلام دايره پراخه ده او له امله به يې بيا هيڅوک په مسلمانانوکې نه مشرک او نه کافر وي، ځکه دوئ اکابر(اهله قبله) ووته کافر نه وايې او اسلامي فقهاء خوبياکوشش کوي چې ديوه مسلمان دغلطو خبرواوزيانمونکيواقوالوته يو محمل صحيحه ومومي، يعنې داهل سنت والجماعت علماء پر(اهل قبله وو) دکفر فتوی نه ورکوي او تر ممکن حده يې داسلام په دايره کې ساتل غواړي، ځکه داسې وعيدونه او منصوصي لاربښوونې شته، چې دمسلمان له تکفيره ممنوعيت ثابتوي ،لکه همدا مسئله داسې په (اشباه والنظائر) کې راغلې ده: -

الإيمان تصديق محمد صلى الله عليه و سلم في جميع ما جاء به من الدين ضرورة والكفر تكذيب محمد صلى الله عليه و سلم في شيء مما جاء من الدين ضرورة ولا يكفر أحد من أهل القبلة إلا بجحود ما أدخله فيه

و حاصل ما ذكره أصحابنا في الفتاوى من ألفاظ التكفير يرجع إلى ذلك وفيه بعض اختلاف لكن لا يفتى بما فيه خلاف

- سب الشيخين ولعنهما : كفر و إن فضل عليا عليهما فمبتدع كذا في الخلاصة الى ان قال: وقوله: لا يتعرض له إنما هو في مرتد تقبل توبته في الدنيا أما من لا تقبل توبته فإنه يقتل كالردة بسب النبي صلى الله عليه و سلم والشيخين كما قدمناه

- واختلفوا في تكفير معتقد قطع المسافة البعيدة في زمن يسير للولي - ولا يكفر بقوله: لا أصلي إلا جحودا ،الاشباه والنظائرجزء ١ص٢١٥ )

داشباه والنظائردعبارت مطلب دادی چې اهل قبله ووته اهل سنت والجماعت کافر نه وايې مګرکله که يې داسلام له اوامرونه جحود او انکار وکړبيا ورته کافر ويلی شي ،يعني تکفير يې له ارتداداو جحود سره تړاو لري په نوروتاويلي او اختلافي مسائلوکې پر بحث کفر نشته.

دامام ابومنصورماتريدي رح اوامام ابوالحسن اشعری رح تر منځ دهغو مسائلونه چې پکې يې اختلاف نظر درلود يوه داهل قبله وو دتکفيرمسئله وه ،چې اشعري پرې قائل او ماتريدي رح ترې انکارکاوه، چې دلاندېني عبارت به څرګنده شي چې دعمر په پای کې امام اشعري رح له خپل قول نه رجوع کړې او پراهل قبله وو يې دتکفيرحکم نا سم وباله لکه داسې :

وقال الشيخ أبو محمد بن عبد السلام: قد رجع الأشعري ـ رحمه الله ـ عند موته عن تكفير أهل القبلة ؛ لأن الجهل بالصفات ليس جهلا بالموصوفات ، وقال اختلفنا في عبارات والمشار إليه واحد ، وقد مثل ذلك بمن كتب إلى عبيده فأمرهم ونهاهم فاختلفوا في صفاته هل هو أبيض أو أسود أو أحمر أو أسمر ، فلا يجوز أن يقال: إن اختلافهم في صفته اختلاف في كونه سيدهم المستحق لطاعتهم وعبادتهم ، فكذلك اختلاف المسلمين في صفات الإله ليس اختلافا في كونه سبحانه وتعالى في جهة كونه خالقهم وسيدهم المستحق لطاعتهم. أهـ [المنثور فى القواعد للزركشى حـ3 صـ90].

وقال الإمام أبو الحسن السبكي: ما دام الإنسان يعتقد شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله ، فتكفيره صعب. أهـ [المنثور فى القواعد للزركشى حـ3 صـ93].

وقال الغزالي: ذهبت طائفة إلى تكفير عوام المسلمين لعدم معرفتهم أصول العقائد بأدلتها ، وهو بعيد عقلا ونقلا ، وليس الإيمان عبارة عما اصطلح عليه النظار ، بل هو نور يقذفه الله في القلب ، فلا يمكن التعبير عنه ، كما قال الله تعالى [فمن يرد الله أن يهديه يشرح صدره للإسلام] [الأنعام ـ125] وقد حكم النبي ـ صلى الله عليه وسلم ـ أن من تكلم بلفظة التوحيد أجرى عليه أحكام المسلمين.

وثبت بهذا أن مأخذ التكفير من الشرع لا من العقل إذا الحكم بإباحة الدم والخلود في النار شرعي لا عقلي خلافا لما ظنه بعض الناس. أهـ [المنثور فى القواعد للزركشى حـ3 صـ94] جامع لطائف التفسير لعبد الرحمن القماشج ١ص١٥٠.

وذكر الإمام العلامة الفخر الرازي - رحمه الله - في تفسيره حـ2 صـ 48 هذه القصة قال: ويحكي أن الإمام أبا القاسم الأنصاري سئل عن تكفير المعتزلة في هذه المسألة (1) فقال لا لأنهم نزهوه فسئل عن أهل السنة فقال لا لأنهم عظموه والمعني أن كلا الفريقين ما طلب إلا إثبات جلال الله وعل وكبريائه إلا أن أهل السنة وقع نظرهم على العظمة فقالوا ينبغي أن يكون هو الموجد ولا موجود سواه والمعتزلة وقع نظرهم على الحكمة فقالوا لا يليق بجلال حضرته هذه القبائح. أهـ

وقال القاضى عياض فى هذا الشأن بعد كلام مطول ما نصه: وقال غيرهما [أب والمعالى وأبو محمد عبد الحق] من المحققين: الذي يجب الاحتراز عن التكفير في أهل التأويل فإن استبحاة الموحدين خطأ والخطأ في ترك ألف كافر أهون من الخطأ في سفك محجمة من دم مسلم واحد وقد قال صلى الله عليه وسلم: [فإذا قالوها ـ يعني الشهادة ـ عصموا مني دماءهم وأموالهم إلا بحقها وحسابهم على الله]

فالعصمة مقطوع بها من الشهادة ولا ترتفع ويستباح خلافها إلا بقاطع ولا قاطع من شرع ولا قياس عليه]. أهـ [الشفا للقاضى عياض حـ2صـ232]

**فائدة**

أخبرنا عبد الرزاق عن معمر عمن سمع الحسن قال لما قتل علي رضي الله عنه الحرورية قالوا من هؤلاء يا أمير المؤمنين أكفارهم ؟ قال: من الكفر فروا قيل فمنافقين قال: إن المنافقين لا يذكرون الله إلا قليلا وهؤلاء يذكرون الله كثيرا قيل فما هم ؟ قال: قوم أصابتهم فتنة فعموا فيها أو صموا] أخرجه عبد الرزاق [18656].

(جامع لطائف التفسير لعبد الرحمن القماش ١/١٥٠)

وقال الإمام الغزالي في كتاب التفرقة بين الإسلام والزندقة: والذي ينبغي الاحتراز عن التكفير ما وجد إليه سبيلا فان استباحة الدماء والأموال من المصلين إلى القبلة المصرحين بالتوحيد خطأ والخطأ في ترك ألف كافر في الحياة أهون من الخطأ في سفك دم مسلم.

قال: وقد وقع التكفير لطوائف من المسلمين يكفر بعضها بعضا ، فالأشعري يكفر المعتزلي زاعما أنه كذب الرسول في رؤية الله تعالى وفي إثبات العلم والقدرة والصفات ، وفي القول بخلق القرآن ، والمعتزلي يكفر الأشعري زاعما أنه كذب الرسول في التوحيد فإن إثبات الصفات يستلزم تعدد القدماء.

وقد حكى الروياني في البحر عن الإمام الشافعي ـ رضي الله تعالى عنه ـ قال: لا يكفر من أهل القبلة إلا واحدا وهو من نفى علم الله عن الأشياء قبل كونها فهو كافر. أهـ [المنثور فى القواعد للزركشى حـ3 صـ87].(جامع لطائف القرآن لعبد الرحمن القماش).

په پورتني تفسيركې دالاما م ابوالحسن اشعري الإمام أبو الحسن السبكي ، الإمام العلامة الفخر الرازي، القاضى عياض ،امام غزالي رح او امام الشافعي اقوال وليكل شول چې ټولوپدې تاييد كاوه چې مسلمان ته كافرويل ناروا دي اوڅوک چې اهل قبله وي دكفر حكم پرې نا جايزدى ځكه دوئ تاويل كوي خو كه چيرته يې جحود يا انكاركاوه نو بيا ورته كافرويلې شي.

علامه الوسي په خپل تفسيركې ددې آيت له راوړلو سره داسې ليكلي: فَإِنْ تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَنُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ (11) وبها استدل على تحريم دماء أهل القبلة ، وروي ذلک عن ابن عباس رضي الله تعالى عنهما ، وجاء في رواية ابن جرير. وأبي الشيخ عنه أنها حرمت قتال أو دماء أهل الصلاة والمآل واحد ،تفسيرالالوسى جزء ٧ص١٢٩)ددې آيت په تفسيركې له ابن عباس رض نه ثابت شول چې داهل قبله ووينې تويول حرام دي اودتكفيرعقيده خوېې لا ددې نه هم اكبرالكبايرده.

په تفسيرابن تيميه للحرانى داسې ليكلې چې: وروى هشام، عن محمد ، عن أبي حنيفة وأبي يوسف - وهو قول محمد - قالوا : السنة التي عليها أمر الناس ألا يكفر أحدًا من أهل القبلة بذنب، ويخرج من الإسلام، ولا يشک في الدين - يقول الرجل: لا أدري أمؤمن أنا أو كافر، ولا يقول بالقدر، ولا يخرج / على المسلمين بالسيف، ويقدم من يقدم من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم ويفضل من فضل.

وذكروا عن أبي يوسف أنه قال: مذهب أهل الجماعة عندنا ، وما أدركنا عليه جماعة أهل الفقه ممن لم يأخذ من البدع والأهواء، ألا يشتم أحدًا من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم، ولا يذكر فيهم عيبا ، ولا يذكر ما شجر بينهم فيحرف القلوب عنهم، وألا يشک بأنهم مؤمنون، وألا يكفر أحدًا من أهل القبلة ممن يقر بالإسلام ويؤمن بالقرآن، ولا يخرجه من الإيمان بمعصية إن كانت فيه، ولا يقول بقول أهل القدر، ولا يخاصم في الدين، فإنها من أعظم البدع .التفسيرللحرانى.

دې تحقيق كې هم داهل سنتو دمستندو مشرانولخوا داهل قبله وودتكفيرنه كلک ممانعت شوى اوداپدې باب كې ديوې پياوړې وثيقې په شكل وړاندې كولاى شو.

په بحرالرائق كې بيا داسې دمسلمان دعدم تكفيرپه باب تشريح وركوي چې: وفي جمع الجوامع وشرحه: ولا نكفر أحدا من أهل القبلة ببدعة كمنكري صفات الله تعالى وخلقه أفعال عباده وجواز رؤيته يوم القيامة، ومنا من كفرهم. أما من خرج ببدعته من أهل القبلة كمنكري حدوث العالم والبعث والحشر للاجسام والعلم بالجزئيات فلا نزاع في كفرهم لانكارهم بعض ما علم مجئ الرسول به ضرورة اه البحرالرائق جزء٢ص٢٤١

والثامن

لا يكفر أحدا من أهل القبلة بذنب. والتاسع يصلي على من مات من أهل القبلة.البحر الرائق جزء١٧ص١٥٢

علامه زين ابن نجيم رح الله فرمايې چې مسلمان ته څوک كافر نشي ويلى ،دامام ابوحنيفه او امام شافعى رح هم دانظردى ،خوچې چاته ويل شوي هغه الفاظ دكفر دي، كوشش به كيږي چې دمسلمان دناسمې خبرې لپاره محمل صحيحه وموندل شي ،لكه چې خپل تصنيف بحرالرائق كې داسې وايې: وَاعْلَمْ أَنَّ الْحُكْمَ بِكُفْرِ مَنْ ذَكَرْنَا مِنْ أَهْلِ الْأَهْوَاءِ وَنَحْوِهِمْ مَعَ مَا ثَبَتَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَالشَّافِعِيِّ مِنْ عَدَمِ تَكْفِيرِ أَهْلِ الْقِبْلَةِ مِنْ الْمُبْتَدِعَةِ كُلِّهِمْ مَحْمَلُهُ أَنَّ ذَلِكَ الْمُعْتَقَدَ نَفْسَهُ كُفْرٌ فَالْقَائِلُ بِهِ قَائِلٌ بِمَا هُوَ كُفْرٌ وَإِنْ لَمْ يَكْفُرْ بِنَاءً عَلَى كَوْنِ قَوْلِهِ ذَلِكَ عَنْ اسْتِفْرَاغِ وُسْعِهِ مُجْتَهِدًا فِي طَلَبِ الْحَقِّ لَكِنَّ جَزْمَهُمْ بِبُطْلَانِ الصَّلَاةِ خَلْفَهُمْ لَا يُصَحِّحُ هَذَا الْجَمْعَ اللَّهُمَّ إلَّا أَنْ يُرَادَ بِعَدَمِ الْجَوَازِ عَدَمُ الْحِلِّ مَعَ الصِّحَّةِ وَإِلَّا فَهُوَ مُشْكِلٌ هَكَذَا ذَكَرَهُ الشَّيْخُ كَمَالُ الدِّينِ بْنُ الْهُمَامِ وَعَلَى هَذَا يَجِبُ أَنْ يُحْمَلَ البحرالرئق جزء١٤ص٥٢

بـل ځـای کـې امـام ابـن نجـیم رح فرمـایي چـې: فَقَـالَ الْمَشَـايِخُ: إنّ مِـنْ شَـرَائط السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَـةِ أنْ لَـا يُكَفِّـرَ أحَدًا مِنْ أَهْلِ الْقِبْلَةِ وَسُئِلَ بَعْضُهُمْ عَنْ الْفَاجِرِ وَالْبَرِّ فَقَالَ: الْفَاجِرُ هُـوَ الْفَاسِقُ مِـنْ أَهْـلِ الْإِسْـلَامِ، وَالْبَـرُّ هُـوَ الْعَـدْلُ مِـنْ أَهْـلِ الْإِسْلَامِ وَقَدْ جَاءَ مُفَسَّرًا عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَـالَ لَـا يَخْـرُجُ أَحَـدٌ مِـنْ أَهْـلِ الْإِسْـلَامِ بِـذَنْبٍ ،البحرالرائـق جزء۳ص۵۰

پـه الدرالمختارللحصـفکی کـې دمسـلمان پـه عـدم تکفیرداسې لیکلي چې: وفي النهر: تجوز مناكحة المعتزلة، لانـا لا نكفـر أحـدا مـن أهـل القبلـة إن وقـع (الـدرالمختـار جزء ۳ص۵۰

امـام ابوحنیفـه خو پـه ځرګنده داهـل قبلـه وولـه تکفیـره چورلټ انکـار کـوي ،لکـه چـې فرمـایي صـاحب الشـرح المیسرللفقهین الابسط والاکبرچې فرمایي: (من أصول أهل السنة والجماعة) :سألت أبا حنيفة النعمان بن ثابت رضي الله تعـالى عنه وعنهم الفقه الأكبر فقال الا تكفر احدا من اهل القبلــة بــذنب ولا تنفــي احــدا مــن الإيمــان (الشــرح المیسرللفقهین الابسط والاکبرجزء۱ص۷۲)/

مشهورمحقق علامه شامي رح وایي چې:

وَأَمَّـا الْمُعْتَزِلَـةُ فَمُقْتَضَـى الْوَجْـهِ حِلُّ مُنَاكَحَتِهِمْ ؛ لِـأَنَّ الْحَقَّ عَدَمُ تَكْفِيرِ أَهْلِ الْقِبْلَةِ ، وَإِنْ وَقَعَ إلْزَامًا فِـي الْمَبَاحِثِ ، بِخِلَـافِ مَـنْ خَـالَفَ الْقَـوَاطِعَ الْمَعْلُومَـةَ بِالضَّـرُورَةِ مِـنْ الـدِّينِ مِثْلُ الْقَائِلِ بِقِدَمِ الْعَالَمِ وَنَفْيِ الْعِلْمِ بِالْجُزْئِيَّاتِ عَلَى مَا صَرَّحَ بِـهِ الْمُحَقِّقُـونَ وَأَقُـولُ: وَكَـذَا الْقَـوْلُ بِالْإِيجَـابِ بِالـذَّاتِ وَنَفْـيِ الِـاخْتِيَـارِ. ردالمحتار/

۹/۳۱۱ (وَ) حَـرُمَ نِكَـاحُ (الْـوَثَنِيَّـةِ) بِالْإِجْمَـاعِ (وَصَـحَّ نِكَاحُ كِتَابِيَّةٍ)، وَإِنْ كُرِهَ تَنْزِيهًا (مُؤْمِنَةً بِنَبِيٍّ) مُرْسَلٍ (مُقِرَّةً بِكِتَـابٍ) مُنَـزَّلٍ ، وَإِنْ اعْتَقَـدُوا الْمَسِـيحَ إلَهًـا ، وَكَـذَا حِـلُّ ذَبِيحَتِهِمْ عَلَى الْمَذْهَبِ بَحْرٌ.

وَفِي النَّهْرِ مُنَاكَحَةُ الْمُعْتَزِلَةِ لِأَنَّا لَا نُكَفِّرُ أَحَدًا مِنْ أَهْلِ الْقِبْلَةِ إنْ وَقَعَ إلْزَامًا فِي الْمَبَاحِثِ. ردالمحتارجزء ۹/۳۰۸

چـې ددې نصوصـواو دعلماوولـه اقوالونـه پـه ډاګـه دانتیجه اخستلای شو ،چې مسلمان ته دګناه په وجه کافرویل نـاروا کـار دی او کوښښ بـه کـووچې دیـوه مـؤمن غلطـی تـه صـحیح محمـل پیـدا کړواوترممکن حـده یـې لـه کفرنـه وژغورو ،چې داهغه نظریه ده ،چې داهل السنت والجماعت اکابرعلماءیې لرې اودافتاء په اصولوکې هم ورته مسئله شته ،چې تر ممکن ځایه به یو مفتي کوښښ کوي ،چې دمومن له تکفیره وساتې او غلطوخبرته یې صحیح محمل وومي ،لکه چې علامـه ابـن نجیم وایـې: والحاصل أن من تكلم بكلمة الكفر هازلا أو لاعبا كفر عند الكل

ولا اعتبار باعتقاده كما صرح به قاضيخان في فتاواه، ومن تكلم بها مخطأ أو مكرها لا يكفر عند الكل، ومن تكلم بهـا عالمـا عامـدا كفـر عنـد الكـل، ومـن تكلـم بهـا اختيـارا جـاهلا بأنهـا كفـر ففيـه اختـلاف، والـذي تحـرر أنـه لا يفتـي بتكفير مسلم أمكن حمل كلامه على محمل حسن أو كان في كفـره اختـلاف ولـو روايـة ضـعيفة، فعلـى هـذا فـأكثر ألفـاظ التكفير المذكورة لا يفتى بالتكفير بها ولقد ألزمت نفسي أن لا أفتي بشئ منها. وأما مسألة تكفير أهل البدع المذكورة في الفتـاوي فقـد تركتهـا عمـدا لان محلهـا أصـول الـدين وقـد أوضحها المحقق في المسايرة /البحرالرائق ۱۱/۲۴۲

همـدا مطلـب پـه الـدرالمختار کې داسې لیکـل شـوی: وفي رهن فتاوى قارئ الهداية: كذا أفتى علماؤنا.

والذي أفتى به صحته بالشهادتين بلا تبري، لان التلفظ بهـا صـار علامـة علـى الاسلام فيقتـل إن رجع مـا لـم يعد (و) اعلم أنه (لا يفتي بكفر مسلم أمكن حمل كلامه على محمل حسن أو كان في كفره خلاف /الدرالمختارجزء۴/۴۱۴.

دبحرالرائق او الدرالمختارلـه عباراتونـه ځرګنده شـوه ،چې دیوه مؤمن وینا چې غلطه هم وي اوددې امکـان یـې وي چې مفتي ورته یو صحیح محمل موندلای شي ،یا تاویـل یـې کـړي وي او داپـه یـوه ضـعیف روایـت هـم بنـاءوي ،نونـده پکـار،چې دکفر په جرم ملزم وبلل شي ،ددې پورتنوعباراتونه دانګیرنه کولای شو ،چې داسلام دایره ډیره پراخه اوسیع ده، په باب یې باید لـه تنګ نظرۍ نه کته وانه خستل شي او تر

ممکن وسه کوشش وشي ،چې یو څوک د اسلام په دایره کې پاتې شي .لکه مخکې مو چې وویل ،د اسلامي نړۍ ولسونه نن سبا په فروعاتو کې د څلور ګونو مذاهبو او په عقایدو کې د ماتریده وویا اشاعروو پیروي کوي او همدغه مدرسې یې دځان دعقیدې او فروعاتو لپاره ټاکلې دا ددې نښه ده، چې امت به نورد اتفاق پرلورځي او له خرافاتونه به بچ کیږي ،زمونږ په باور چې د اڅلور ګونې مذاهب او د ماتریدیه یا اشاعره وو دمسلک انتخاب د امت مسلمه د وحدت او د نن سبا په له فتنو ډک دور کې د اتفاق ضمانت ورکوي، څلور ګونې مذاهب چې د اسلامي امت د جمهور و علماوو په اتفاق سره موثوق شوي او وثیقه یې له قرآن او سنت نه ترلاسه کړي ،اجماع او قیاس یې هم له نصوصو بعد دلایل دي او ددې څلورو ماخذونو نه فقهي مسایل مستنبط دي ،دامت له دتایید وړ کرځیدلي دي ،نن سبا چې په نړۍ کې دمطلق اجتهاد ضوابط او شروط چاکې نه لیدل کیږي ،نو ځکه امت پر څلور ائمه وو راغونډ دی او دهغوئ استنباطات او فقهي قواعد د جزئیاتو د استجراج سرچینه بولي ،ددې وجه خو څه باندې دوه نیمې پیړۍ مخکې دستر محقق علامه شامي رح داګوتخنډ نه ده چې (ماپدې پیرکې چې زه پکې ژوند کوم داسي څوک ندي لیدلې چې د اجتهاد استعداد دې ولري اودا دې مجتهد شي )هغه جوت پیغام دی ،چې اجتهاد کوم معمولي او سرسري کار ندی او نه کومه وړه مسئله ده، بلکې دپیغمبرص دځای ناستي په توګه یې له زړه او دماغو دهغو مسائلو استنباط دی ،چې له کتاب او سنتو نه په دقیق النظر او عمیق تبحر سره له خپلو ضوابطو له مخې صورت نیسي ، داسې به وي ،چې د شریعت منل شوي فرع شي او له نصوصو سره په تضاد کې نوي، اجتهاد داسې اصول لري چې نن سبا په چا کې نه موندل کیږي.

همداسې په عقیدوي مسایلو کې د برصغیر په شمول دافغانستان او ماوراء النهر مسلمانان د امام ابو منصور ماتریدي رح د نظریاتو پیروي کوي او پرعقایدو یې ګروهمند دي ،(اشاعره او ماتریدیه) چې په خپلو منځونو کې په ډیرو کمو مسایلو کې اختلاف نظر لري او هغه هم اختلاف صوري یا نزاع لفظي ده ،نو همداد (اشاعرو یا ماتریدیه وو )په متن او حاشیو کې د اهل سنت والجماعت تر بیرغ لاندې د خلکو راغونډیدل هم دامت د اتفاق یو بل مظهر دی ،چې ځیني مسلمانان له اشاعرو او ځیني د امام ماتریدي رح په بڼ کې راټول دي اوله فرقو باطلو د فتنو نه یې ځانونه ساتلي دي.

وروسته به بحثونو کې هم په تفصیل سره راشي، چې متاخرین او معاصر علماء عام پدې ترکیز کوي، چې دفتنو نه دخلاصون لاره همدا ده، چې فروعاتو کې مذاهب اربعه انتخاب کړای شي او د تقلید په خپلولو سره دفتنو مخه بنده کړای شي.

ددې لپاره چې د اهل سنت والجماعت په حقیقي مفهوم باندې ځان پوه کړو د اهل قبله وو ،دعدم تکفیر موضوع خو موپه مقدماتي مباحثو کې په منصوصي او فقهي دلایلو ثابته کړه ،همداسې به راتلونکیو څیړنو کې انشاءالله تعالی لاندېني عنوانونو نه تر تحقیق لاندې ونیسو:اهل سنت والجماعت څه معنی ؟اهل سنت والجماعت یا ناجیه فرقه/نن سبا اهل سنت والجماعت څوک دي ؟/د ما انا علیه واصحابی تشریح /داهل سنت والجماعت اصطلاح کله رامنځ ته شوه ؟تاریخي قدامت یې /داهل سنت والجماعت نوم ولې او دچا په مقابل کې رامنځته شو ؟/اشاعره او ماتریدیه څوک دي ؟/امام ابوحنیفه رح دعلم کلام دلومړنی مدون په حیث/داهل سنت والجماعت عقاید او نظریات ....داسې نوراړین موضوعات به ددې تحقیقاتي مقالې په صدد کې پرله پسې دڅرک مجلې له لارې دخپلو لوستونکیو په خدمت کې وړاندې کړو ،چې البته ددې مقالې په اوډون او چمتوکولو کې مو دتفاسیرو، داحادیثو دمتونو ،شروحو سربیره ،دمشهورو فتاوو فتواوي ،دمتاخرینو او برصغیر دلویو منل شویو علماوو له اثارو او تالیفاتو اعظمي استفاده شوي ، چې دمقالې په پای کې ټول ماخذونه د سند په توګه ولیکو انشاءالله تعالی !

# ستاسو په کلي کې د امريکايي عسکر پښه ورکه ده!!؟



لطيف الله ـ ع

لکه د هيواد د نورو سيمو او ولايتونو په څير لوګر ولايت هم هغه سيمه او ولايت دى چې د تيرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې د خارجي يرغلګرو او داخلي ګوډاګيانو زرګونه ککړې هلته خاورې ، سوونو ټانګونه او نقليه محاربوي وسايط يې دړې وړې او په درځنو چورلکې او الوتکې د مجاهدينو له لورې راوغورځول شوي .

دا خبره له هيچا پټه نده چې د لوګر له ۹۰ فيصده زياته ځمکه د مجاهدينو تر داسې ولکې او سلطې لاندې ده چې هلته عملاً د اسلامي امارت لوايح او فرامين پلي او تطبيق دي ، د قضا په ګډون د امارت بيلابيلې ادارې او د تصميم نيونې مراجع فعالې دي او مجاهدين علني جلسي او له ولس سره ناستې ولاړې لري او ماته ډير جالب ټکی دادی چې کله دير غلګرو او ددوی د ګوډاګيانو له لوري په يوې سيمه کې کوم مجاهد د شهادت جام نوش کړي ؛ په خلکو کې يو لويه جذبه ګډيږي ، خپل ټول کارونه او روزګار معطلوي او د نازولي شهيد په جنازه کې ګډون او برخه اخلي ،کله چې د شهيد جسد د جنازي لپاره ورل کيږي په بامونو تورسري

او سپين سري ناستې وي په غمجنو او اوښکلنو سترګو ورته ګوري لپې لپې اوښکې تويوي دعاوي کوي او د شهادت مبارکی ورته وايي .

کله چې ځوانان چې په هغوکې ډير لوستي او د عصري علومو شاګردان او محصلين هم شامل دي د شهيد د جنازي اعزازي مراسم ، سپينه او ګلګون کفنه څيره ويني او د خلکو هجوم ، ولولې او د تکبير ملکوتي نعرې مشاهده کړي نو هرځوان په همدې ځای کې له شهيد او پاکو ارمانونو سره يې کلک عهد کوي چې شهيد ه ستالار او مسير به تعقيبوم او له اشغالګرونه به دې ار و مرو انتقام اوغچ اخلم

د ولس له جهاد ، دين او مجاهدينو سره همدغه اخلاص او دزړه د تل مينه وه او دی چې ديوه شهيد په جنازه کې لسګونه دهغه همځولي جهاد او قربانی تياريږي او د مجاهدينو ګروپونو او ټوليو ته ځانونه رسوي .

ماتــه خـــوداخبره هــم معلومـــه ده چــې ددینـــي علومودطالبانوترڅنګ په روان جهادکې دعصري علومو شاګردان څومره ونډه اوبرخه لري ،دلوګرپه ټولولیسوکې هردریم اوڅلورم شاګرد مجاهداویاورسره دومره څرګنده مینــه لــري چــې د موبایلونو حــافظې یــې دمجاهدینولــه ترانواوجهادي ویډیوګانوڅخه ډکې دي اوددې پرځای چې سندري اونــاولي ووینــي جهــادي ترانــي اوري اوجهــادي صحنې ګوري .

داسې نده چې اسلامي امارت ددغوشاګردانو پـه ذهنونوځانګړې کارکړې اویایې مادیات ورکړې ، بلکې الله تعالی یې خپله لـه جهادسره مینه پیداکړي هغوی پـه دې سخت خوشالیږي چې داشغالګروکوم ټانګ والوزي اودوی یې کنډرکنډرټوټې په خپلوسترګووویني !!

یوه مجاهدورراته خبره کوله چې دلوګر ولایت مرکز مربـوط دخدرکمپـاین تـه نیږدي ( دحامدکرزي ) پـه نـوم دیوې لیسې غالبادلسم اویایولسم ټولګي یوزدکونکی د( نـاظر ) پـه نامـه ووچـې یوزوړبایسـکل یــې لاره اوجسـمي جوړښت یې هم کمزوری وو ، ددرس په وخت کې بـه یې تل دکمپاین په لارې اوعمومي دروازې سترګې خښې کړې وې چې دیرغلګرودټانګونوکتاربه کوم لوري ته مخه کوي ، کله به چې پوه شـو چې کتـاردده ترهدف لاندې مسیر بـاندي روان شو نوپرته له دې چې له استادنه اجازه واخلي پـه ډیرې چټکتیا به یې په زاړه بایسکل پښه واړوله اوهغه ځای ته به یـې ځـان ورسـولوچې نومـوړي میرنـي اتـل بـه مخکـې لـه مخکې ماین دلاري په یوې برخې کې ځای پرځای کړی وو پـه ډیرلـږوخـت کـې بـه یـې مـاین هــدف اوګوزارتــه چمتوکړاوهغه به لږپه فاصله کې لـه ریموډ سره ورتـه ناست وواوله چاودنې به یې په خپلوسترګولذت اخیسته ،څوشیبې ورسـته بـه دیرغلګروپـه کتـارلویـه چاودنـه ترسره شـوه اودخدای دلارې دغـه بې ریااوسرمست ځوان بـه بیرتـه لـه غزانه فاتح لیسې ته راستون شواوپه درسوویلوبه یې شروع وکړه ، دمجاهدناظردایوځل نه وو ، بلکې لسګونه ټانګونـه

الله تعـالی دهغــه اونوروڅوتنومحدودوملګروپــه واسـطه دماینونودخاص تکتیک په مرسته لـه منځه وړل شوي وي ، چې بالاخره داسلام دلارې دغه خاموش مجاهد څومیاشتې وړانـدې خپلـې ابـدي هیلـې ( شـهادت ) تـه هغـه مهـال ورسیدچې امریکایي چورلکودماین خښولوپه وخت کشف اوله یوبل نامتومجاهدملاخواني سره یوځای داشغالګرو دچورلکې هدف وګرځید ، ملاخواني په داسې حال کې چې تپــي وژونــدی دامریکایانولاســته ورغــی او کلــه چــې امریکایانو پوه شول چې نوموړی هغه څوک ده چې لسګونه ټانګونــه یــې ویجــاړاودوی تــه انتهــایي مطلــوب دی نودکمپاین په روغتون کې یې پـه ډیروحشت پـه برچوسوری سوري اوبیاشهیدکړ، داهسې زمونږدتنکیو اتلانوقربانیواو میړانویومشت نمونه خروارېادونه ده چې روان جهادڅومره سپیڅلي اوپه څومره تنکیواوپاکوارادومخ پـه وړاندې روان دي .

همدارنګـه پـه روان جهـادکې دپټمنومجاهدوبنځوونډه بلکل لـه نارینـه ووڅخـه کمـه اولـږه نـده ، پـه دې سرییره چې مجاهدینوتـه ډوډوي برابروي ، جامې ورتـه وینځـې ، اکثره مجاهدین وایي چې کله مونږله عملیاتو راستانه شواوسخت ستړي اوستومانه هم یو ، خوچې کله مودکوم مخلص عـام مســـلمان وروردروازه ورټکـــولې اودحالاتولـــه وجـــې معمولاددراوزي شاته کومه موراوخورراغلې اوپوښتنه یې کړې چې څوک یی اومونږورتـه ویلي وي چې ( طالبـان ) نوهیڅکله داسې نده پیښه شوي چې منفي ځواب راکړی ، بلکې ویلي چې ښه ده زه سړي راخبروم دروازه بـه درتـه خلاصه کړي

مجاهدین داهم وایي چې مونږتـه پـه کراتومراتوثابتـه شـوي چـې ترسـهاره دغومجاهدومیندواوخویندوپـه بـامونوپیره کـړي چـې مبادادیرغلګروچاپـه ونـه لـویږي اومجاهدین ژوندی لاسته ورنشي .

یوه مجاهدکیسه راته کوله چې تیرکال دلوګرپه مرکزي سیمه (دعیسـی خیلوخـوړکې) لـه هغـه ورسـته چـې لـه

ځوتنو ملګرو سره مو په امریکایی کتار برید وکړ او درون زیان مو وروا ړاه ، له بره امریکایي چورلکې وي او په ځمکه لسګونه امریکایی عسکرپیاده شول او زمونږ لټه یې شروع کړه ، مجاهدین مجبورشول چې کلي ته پناه یوسي ، له ماسره پیکاه وه په هغې مې هم زړه نه کیده چې په پټیوکې یې وغورځوم او امریکایان یې واخلي له بلې خوا درنه هم وه او چورلکو هم سخت غوبل پیل کړی وو ، دیوه کورمخې ته یوه حیاناکه او مجاهد خورګرځیدله کله یې چې زما ورخطایی ولیده پلویې مخ ته ونیوه او راته وي ویل چې طالب یې ، ماورته وویل چې هو طالب یم او امریکایان راپسي دي څه وکړم ؟غیرتمنې خور وویل چې پیکادې ماته را کړه نوردې په مخ ښه چې له پیکاسره دې یوځای ونه نیسي نور به الله خیرکړي ، هماغه ووچې پیکامې هغې ته په ځمکه کینبوده خوردسترګو په رپ کې پیکا په غیږکې په ټکري پټه او په یوه منډه یې کورته ننه ویستله ، هماغه ووچې له زه کلي نه ووتم او الله تعالی دهغې میړنی خورپه وجه له یرغلګروخلاص او ژوندیي راوباښه ، مجاهدویل همدلته مې وویل چې وګوره زمونږ خویندي څومره له فداکاریو او جهادي احساس څخه مالامالې دي چې لوی خطریې په ځان قبلوي او په سترګوويني چې امریکایان په طالب پسي راروان دي اوله بره یې چورلکې ویني خو بیا هم مجاهد ته له مرګه پناه ورکوي او آن وسله یې ورته ساتي.

درنو لوستونکو وګوری ! زمونږ ولس ، زمونږ ځوانان ، زمونږه خویندي او میندي څومره جهاد ، طالب او دین ته رغبت ،اخلاص او محبت ورسره لري ، الله تعالی دي مونږ ته هم توفیق راکړي چې ددغه غیورولس همداسې قدرونه او عزت وکړو ، مایوس یې نکړو ، مشورې ورسره ولرو او په زخمونویې ملهمونه کیږدو.

اصلي موضوع رانه پاتې شوه ،تیره میاشت دلوګرد مرکز اړوند دمشهورکلي (پادخواب شانه ) چې دجهاد او علم لوی مرکز دي دیوې غونډی په سرجوړې شوي پوستې ته یوه ډله امریکایي ځناورپیاده راپورته کیدل چې دمجاهدینو دیوه ښخ کړل شوي ماین په نتیجه دلسو په شاوخواکې عسکرمړه او ګوډ ومات شول ، نومو ړې چاودنه دومره قوي او موثره وه چې دډیرو امریکایي عسکرودوجودبرخې او ټوټې دغونډی شاوخوا دانګورو باغونوته غورځیدلې وي چې دهغوی په جمله کې دیوه امریکایي عسکرټوله پښه هم یوځای پرته وه ، دکلي ماشومانو هغه پښه پیدا او بیایې مجاهدینو ته وسپارله ، مجاهدینو هغه خبیثه پښه دپادخواب شانه دجامع جومات مخ ته دخلکو دننداري لپاره په ونه راوځړوله ، دپیښې په سبا دګوډاګی اداري والي دپادخواب شانه سپین ژیري ولایت ته وغوښتل او ورته یې وویل چې په پرونی چاودنې کې دځوامریکایانو پښې ورکې دي تاسې باغونه ولټوی ترڅو پښې پیدا او مونږ ته یې وسپاری ، سپین ژیرو ورته وویل چې له نورو پښونه یو خبرالبته یوه دانه دپادخواب دمزار جامع جومات مخ ته طالبانو راځړولې ده ،که یې غواړی مونږته مکتوب ولیکي ځکه چې طالبانو ته زمونږ دلیل جوړشي ، هماغه ووچې والي مکتوب دپادخواب دخلکو او سپین ژیرو په نامه ولیکه چې په پلاني تاریخ دیوې چاودنې په وخت دیوه امریکایی پښه نادرکه شوې ده او داسې راپورونه دي چې هغه اوس دپادخواب دجامع جومات مخ ته راځوړنده ده تاسې بایدامریکایي پښې په راسپارلو کې مرسته وکړی ځکه چې ایتلافي قواوو پرمونږ سخت فشارا چولی !

سپین ژیرو هغه مکتوب طالبانو ته راوړ طالبانو هم دسپین ژیرو غوښتنه ومنله او اجازه یې ورکړه چې دامریکایي پښه له ونې خلاصه او ولایت ته وسپاري!

# ترټولو خطرناکه نشه او پر ضد یې نړیوال مبارزه

حسن مومند

وايي: چا ديو هوښيار نه وپوښتل چې سيګرټ څه شی دی ؟ هغه برجسته جواب ورکړ او ويې ويل چې هغه څه چې يو سر ته يې اور ، بل سر ته يې يو احمق انسان او په منځ کې يې بې شمېره مرضونه وي ،،

دا خبره ډېره د کار خبره ده او د سيګرټو لويو تاوانونو ته په پام سره ددې وړ ده چې د سرو زړو په اوبو وليکل شي .

زموږ ټولنې کې په سيګرټو د روږدو تنانو شمېره ډېره زياته اوښه په بې باکۍ په لوړه پيمانه تماکو کارول کېږي خو متأسفانه چې د ضررونو په اړه يې په ټولنې کې معلومات ډېر کم دي او په دې اړه په خلکو کې دا ګاهی لپاره هيڅ پروګرام نشته .

چلم زموږ د دېرې او حجرې نه جدا کېدونکې برخه وه د افغان په حجره کې به چې چلم نه و خلکو به پرې بد ويل او داسې به يې ګڼل لکه چې حجره وي خو پکې چا ته چای او ډوډی نه ورکول کېږي ، د هجرت سره سم په مهاجرو افغانانو کې د چلم کلتور بيخي له منځه ولاړ ، او د سيګرټو سکل ډېر راکم شول ، سيګرټ خلکو د لوڅکانو عادت ګڼلو نو ځکه به ترې شريفو مهاجرينو ځان لرې ساتلو او ډېر ی کمېونه خو داسې وو چې پکې د سيګرټو په سکلو او خرڅلاو بنديز و ، خو دلته په هېواد کې خبره بېخي برعکس وه ، دلته چې فاسد کمونستي دولت مسلط وو نو په ځوانانو کې د اخلاقي نورو فسادونو د زياتوالي تر څنګ د سيګرټو سکل هم ډېر زيات شوي وو او خبره تر يې سوادو خلکو نه وه محدوده بلکې د دوزيرانو ، فوځي جنرالانو او پوهنتون د استاذانو نه نيولې دفتر تر ماموراو د مکتب تر معلمه به په باسواده خلکو کې هم د سيګرټو سکل داسې عادي خبره وه چې هيڅ د عيب په سترګه به ورته نه کتل کېدل .

تر دې چې د متوسطو او ثانويو په تنکيو ځوانانو کې به ترې هم ډېر کم خوندي پاتې وو ځکه چې په مکتبونو کې به درسونه نه وو چې له امله يې د اخلاقي فساد د خپرېدا په مرکزونو بدل شوي وو چې زموږ ټولنې ته همدې ډېر ستر تاوانونه د تاوانونه ورسول .

د اسلامي امارت د قيام پر مهال د سيګرټو کارولو کې ډېر کموالی راغلی و خو له بده مرغه چې د اشغالګرو د قبضې نه پس په ځوانانو کې د نورو اخلاقی فسادونو د ډېروالی تر څنګ د سيګرټو سکلو کې هم ډېروالی راغلی خو پر ضد يې هيڅ ډول مبارزه نشته ، نه يې هم په مقابل کې اوازپورته کېږي او نه يې عام وګړي له تاوانونو خبره ولاړی شي .

د طب پوهان وايي چې د سيګرټ دلګېدلو سره سم د ۴ زرونه زيات کيمياوي اجزاء توليدېږي چې پکې ۲سوه اجزاء د انسان صحت ته ډېر زيات تاوان رسوي چې د همدې تاوان رسوونکو څخه يې ۴۷ داسی دي چې مخامخ د سرطان سبب ګرځي او يا د سرطان په رامنځته کوونکو اسبابو کې مرسته کوونکې ثابتېږي .

د سيګرټ د يو کش نه ايله ۶ثانې پس پدې کې د نيکوټين په نوم مواد د سګو نه د تېرېدونه پس په وينه کې جذبېږي چې له امله يې اعصاب مړه شي او سيګرټ سکونکی د تسکين احساس کوي نو ځکه يې بيا سکلو ته اشتهاء کېږي .

سيګرټ يوازې د تماکو ، کاغذ او د پلاستيکي پشم نه جوړ فلټر مجموعه نه ده بلکې په جوړښت کې يې په لاندې ډول د ذکر شويو لسګونو نورو هغو موادونه هم کار اخستل کېږي کوم چې صحت ته ستر تاوانونه اړوي مثلاً بينزين چې د وينی د سرطان سبب ګرځي

فارميلډي هايډ: دابې رنګه کيمياوي مواددي چې د مړو قسمونو د خوندي ساتلو لپاره استعمالېږي د ساه او دهضم له مرضونو پرته د سرطان سبب هم ګرځي.

ايمونيا: نور کيمياوي مواد دي چې د رنګ صافوالي او تازه والي لپاره په سيګرټو کې استعمالېږي.

ټار د سيګرټو دلوګي سره يوځای سږو ته ننوځي چې ۷۰ سلنه يې په سږو کې دننه پاتې کېږي.

نيکوټين: په تماکو کې موجود نشه راوستونکي کيمياوي مواد دي چې له امله يې انسان د سګرټو عادي ګرځي.

کاربن مونو اکسايډ: د موټرو د لوګي نه چې انسانانو ته کوم ضرر رسونکی غاز توليدېږي د سيګرټو دکيمياوي موادو نه هم هماغه غاز توليدېږي.

ويرناکلين: د سيګرټو بل مهم جز دی چې د ډپريشن، خپل ځان ته د ضرر رسولو، ځان وژنې، دزړه د مرضونو او د شيريانونو د بندوالي سبب ګرځي.

ليډ: په وينې کې هيموګلوبن سره يوځای کېږي چې داکسيجن رسولو کې کموالی راولي.

ټسينس: سيګرټو کې استعمالېدونکي کېمياوي مواد دي چې د سږو د سرطان سبب ګرځي.

آرسينک: دا هغه کيمياوي مواد دي چې د بوټو او فصلونو د حشراتو د وژلو لپاره پاشل کېږي، دا مواد د تماکو په بوټي کې يوځای کېږي او خپل زهرجن اثرات د انسان په بدن کې خپروي.

کيډميم: دا هغه کېمياوي مواد دي چې په بيټريو کې کارول کېږي او د سګرټ مهمه برخه هم ده، د سيګرټ سکونکو په بدن کې ددې مقدار څو چنده زياتېږي.

((P ۲۱۰)) او ((L ۲۱۰)) نومي مواد چې سيګرټ يې توليدوي په انساني ټولنې يې بد اثرات داتوم داستعمال نه پس بدواغيزو ته نېږدې دي. دهر ځل سيګرټ سکلو له لارې دانسان بدن ته ۸ملي ګرامه نکوټين ننوځي دا دومره خطرناک مواد دي چې دطب پوهان يې په اړه وايې: په يوځل ۴۵ ملی ګرامه نکوټين خوړل دانسان دمرګ سبب ګرځي.

دسيګرټ يا چلم سکل نه يوازې دا چې انسان دنشې عادي ګرځوي او په اعصابو بدې اغېزې کوي بلکې نورې ډېرې بدې اغېزې پر بدن پرې باسي خو تر ټولو زيات تاوان سږو ته رسوي، سږو کې دننه د ساه لارې تنګوي، دساه په اخستلو کې مشکلات راولاړوي، د اکسيجن د جمع کولو په صلاحيت کې کموالی راځي او دسږو د سرطان سبب ګرځي. سيګرټ د قلبي امراضو سبب هم ګرځي، د غاښونو او کلمو مرضونه ترې هم پيداکېږي په نظر هم بدې اغېزې کوي، او په سړو او مېرمنو کې د شنډتوب يو لوی لامل هم د سيګرټو سکل دي، حاملو مېرمنو ته سيګرټ ډېر زيات تاواني دی په حمل باندې يې بدې اغېزې کېږي لکه دحمل ضايع کېدل، د وزن کموالی يې، د بدن وړوکی کېدل د پيداکېدو نه وړاندې مړه کېدل ياپه غبرګونو کې د يو مړه کېدل، د وخت نه وړاندې د کوچني ولادت او داسې نور.

د سيګرټو بد اثرات د پېی ورکوونکو ميندو نه ډېر ژر کوچنيانو ته انتقالېږي

C.O.P.D د سږو دهوا په لارو کې د دائمي موانعو ايجادونکی د يو ډول مرضتيا نوم دی، دامرض سږو ته دهوا د داخلېدو لارې ورو ورو تنګوي تردې چې داسې وخت راورسېږي چې بيا تنفس اخستل ډېر مشکل شي، د ټوخې سره د بلغمو راوتل ددې مرض لويه نښه ده، په نړی کې د ۵ سلنې مړينې لامل همدا مرض دی ياني په ټوله نړی کې ددې مرض په سبب هره ورځ ٦ زره انسانان خپل ژوند له لاسه ورکوي چې داشمېره د سږو او سينې په سرطان د مړو له شمېرې زياته ده، کلکړ چاپېريال هم ددې مرض په عواملو کې شمېرل کېږي خو سيګرټ سکل يې تر ټولو ستر عامل دی.

دا مرض په امريکا کې د معذوروالی تر ټولو لوی او د مړينو ۲ يم سبب دی، د روغتيا د نړيوالی ادارې له لورې په نويو خپرو شويو راپورونو کې راغلي دي چې په نړی کې د ۲۱۰ ميليونو نه زيات انسانان په دې مرض اخته دي، که دامرض په همدې رفتار خپرېږي نو تر ۱۲۲۰ م پورې به دامرض په ټولې نړی کې د مړينو ۲يم تر ټولو ستر سبب او دمعذوروالی پنځم تر ټولو ستر لامل وي، دا مرض ورو ورو خپرېږي، د وخت په تېرېدو يې علامې ډېرېږي او دهرې ورځې نه بلې ته سړی دومره کمزوری کېږي چې د خپل

ورځني ژوند په کوچنو کارونو کې هم سړی ځان ډېر ستړی محسوسوي، ډاکټرانو تر اوسه ددې مرض علاج نه دی معلوم کړی او نه پدې پوهېږي چې د ساه لارو او سږو ته چې کوم تاوان رسېدلی دی دا څرنګه ورغول شي؟ خو مسلسل علاج او دځای په بدلون مرض کمېدای شي.

د روغتیا د نړیوالی ادارې د راپور له مخې د تماکو روږدي وګړو کې کابو نیم یې د همدې نشې له امله خپل ژوند له لاسه ورکوي، هر کال په نړۍ کې ٦ میلیونه انسانان د تماکو د کارولو له امله مړه کېږي، په دوی کې ٦ سوه زره هغه تنان دي چې تماکو پخپله نه سکي خو مخامخ یې له لوګي څخه اغېزمن کېږي، که د تماکو کارول همداسې جریان ومومي نو دا خطره شته چې تر ۲۰۳۰ م پورې به یې له امله هر کال ۸ میلونه انسانان خپل ژوند له لاسه ورکوي.

په هرې دقیقې کې په ټولې نړۍ کې کابو ۱۰ میلیونه سیګرټ خرڅېږي، یوازې په چین کې په هرې دقیقې کې دوه نیم میلونه انسانان سیګرټ سکي، په ټولې نړۍ کې د سیګرټو روږدي تنانو کې ۷۰ سلنه هغه دي چې ۱۸ کلونو ته له رسېدو یې وړاندې سیګرټ پیل کړي وي، د تماکو د استعمالونکو د ۸۰ سلنه وګړو تړاو د وروسته پاتې هېوادونو سره دی خو داسې هم نده چې په پرمختللو هېوادونو کې یې استعمال کم دی، د بی بی سی رادیو نه په یو خپور شوي راپور کې راغلي دي چې په برتانیه کې هره ورځ ۵۷۰ کوچنیان د سیګرټو سکل پیلوي او د ۱٦ کلونو نه د کم عمر لرونکو کوچنیانو څخه ۲۷ سلنه کوچنیانو خامخا یو ځل سیګرټ سکلي وي چې بیا پرې ورو ورو روږدي شوي هم وي.

د طب پوهان وایي چې نړۍ تر اوسه د صحت په باره کې د څو مره خطرونو سره مخامخ شویده د تماکو کارول یکې تر ټولو ستر خطر دی او د تماکو معتاد توب د هېروینو په پرتله ۴۰ چنده زیات طاقتور دی.

تماکو چې د انسانانو صحت ته ډېر زیات ضرر رسونکی شی دی بلکارده چې اوس یې په نړۍ کې نوم او نښه هم نه وای خو متأسفانه چې نه یوازې دا چې نړۍ کې یې دختمولو هڅې نه دي شوي بلکې ورځ تر بلې په کې زیاتوالی راځي ځکه چې تجارت یې د ملټی نیشنل لویو شرکتونو په لاس کې دی له دې لارې دا شرکتونه په ملیاردونو ډالر لاسته راوړي او دا خو څرګنده ده چې د کوم شي سره د ملټی نیشنل شرکتونو ګټې تړلې وي که له هغې انسانانو ته ډېر لوی زیانونه اوړي پر هغې بندیز ډېر ګران وي.

په نړۍ کې هر ځل د مئ په ۳۱ مې نېټې د تماکو پر ضد د مبارزی ورځ لمانځل کېږي په سترو هوټلونو کې پروګرامونه کېږي، بېه ډېر مصرفونه پرې ګېږي، د طب پوهان مقالی وړاندې کوي د سیګرټو ضررونه بیانېږي د دولتونو له لورې د تماکو د کارولو د له منځه وړلو یا راکمولو ژمنې رامخی ته کېږي خو په عمل کې هیڅ هم نه ښکاري.

موږ مسلمانان باید پدې اړه غفلت پرېږدو د تماکو د خوړا ډېرو بدو اغېزو نه د ټولنې د ژغورنې په موخه باید ددې پر ضد اجتماعی او انفرادي اواز پورته کړو او د له منځه وړلو لپاره یې د ممبر او محراب پورې هره د ابلاغ وسیله په کار واچوو تر څو مو د روغتیا په اړه ټولنه د لا زیاتو مشکلاتو سره مخامخ نه شي او د مال ډېره برخه مو پر یو ضرر رسونکې شي ونه لګېږي.

پوهان وایي چې د سیګرټو د پرېښودلو اسانه طریقه کلک عزم دی له کلک عزم پرته بله یوه کامیابه لار هم نه لري.

چې کله پرېښودل شي نو ضررونه یې هم مخ په کمېدو شي د پرېښودو نه ۱۲ ساعته پس په وینه کې د کاربن مونو اکسایډ مقدار بېرته راکم شي کوم چې د سیګرټو له امله زیات شوی و.

د۲نه تر ۱۲ اوونیو پورې د سږو فعالیت بېرته خپل ځای ته راځی، د۴نه تر ۲۰ اوونیو پورې د ټوخې او ساه تکلیفونه له منځه ځي، د ۵ کلونو نه پس د فالج خطر د نورو نورمال انسانانو په څېر کمېږی

او که په سرطان اخته نه وي نو د ٦ نه تر ۸ کلونو پورې په سرطان د سږو د اخته کېدو خطره هم له منځه ځي.

د خدای نه مو دعا ده چې پرې داخته ټولو مسلمانانو زړونه تړې واوړي. آمین.

# ابعاد یک رسوایي

دولتمردان آمریکا که همواره مدعي حمایت از حقوق بشر هستند و با این ادعا نیز به دخالت در امور کشورها مي پردازند این روزها با رسوایي افشاي جاسوسي دولتمردان از زندگي شخصي مردم مواجه شده اند. اسناد افشا شده از سوي «ادوارد اسنودن» مأمور سابق ۲۹ ساله «سیا» نشان مي‌دهد که دستگاه‌هاي اطلاعاتي آمریکا با مجوز رسمي از سوي مقامات به جاسوسي از زندگي شخصي مردم مبادرت ورزیده‌اند. این مسئله نشان این امر است که ادعاي اوباما مبني بر کنار نهادن سیاست‌هاي دوران بوش ادعایي واهي است و وي نیز با ادعاي قانون میهن پرستي بر طبل نقض حقوق شهروندان مي کبد. رسوایي‌هاي اخیر را مي توان ادامه خلف وعده‌هاي اوباما براي تعطیل ساختن زندان گوانتانامو، عدم تجاوز به حریم خصوصي شهروندان دانست که البته با افزودن اصرار وي بر استفاده از هواپیماهاي بدون سرنشین براي کشتار در سراسر جهان پرونده‌اي قطور از نقض حقوق بشر توسط اوباما را به نمایش مي‌گذارد. نکته قابل توجه در رسوایي شنود مکالمات شهروندان آمریکایي آنکه تمام جامعه آمریکا تحت پوشش این طرح قرار داشته‌اند که نشانگر دیکتاتوري و نقض سیستماتیک حقوق بشر اعمال شده از سوي دولتمردان آمریکا مي باشد.

این روند بار دیگر این سوال را در ذهن افکار عمومي جهان ایجاد مي‌کند که اگر آمریکا واقعا به دنبال تحقق حقوق بشر در جهان است و با این ادعا به پرونده سازي علیه کشورها مي پردازد و حتي نسخه جنگ علیه کشورها را تجویز مي‌کند چگونه در داخل چنین خفقاني را ایجاد کرده است. فضاي داخلي آمریکا نشانه‌اي دیگر بر واهي بودن ادعاهاي حقوق بشري سران آمریکا است.

نکته قابل توجه آنکه سران آمریکا بر آنند تا از این رسوایي به عنوان مولفه‌اي براي رسیدن به اهداف خود بهره برداري کنند چنانکه آنها با ادعاي اینکه فضاي اطلاعاتي و سایبري آمریکا فاقد ایمني لازم به حفظ اطلاعات محرمانه است از یک فضاي امنیتي کشور را تشدید کرده‌اند و از سوي دیگر به دنبال توجیه ورود به جنگ سایبري با مردم آمریکا و جهان مي‌باشند. سیاست هاي آمریکا نشان مي‌دهد که آنها بر آنند تا ابعاد جدیدي از جنگ را در صحنه جهاني ایجاد نمایند که محور آن را ورود به حوزه سایبري تشکیل مي‌دهد چنانکه ناتو نیز در آخرین نشست خود این ورود به این عرصه را مورد تاکید قرار داد. با تمام این تفاسیر مي‌توان گفت که رسوایي جاسوسي از شهروندان نشانه اي دیگر بر واهي بودن ادعاهاي حقوق بشري دولتمردان آمریکاست که همواره تلاش کرده‌اند تا از مقوله حقوق بشر براي رسیدن به اهداف جهاني بهره برداري نمایند. رسوایي که مي‌توان از آن با نام تروریسم دولتي یاد کرد که نه تنها سایر کشورها بلکه ملت آمریکا را نیز قرباني منافع خویش یا همان اصل حفظ نظام سرمایه‌داري به قیمت نابودسازي تمام جهان ساخته‌اند.

# محمد بختیار خلجي

قاري محمود غزنوي

سلطان شهاب الدین غوري رحمه الله پراخه امپراتوري (۵۵۰-۶۰۲هـ) را منځته کړې وه، چې د موجوده افغانستان له ماوراءالنهر څخه د تر بنګاله پورې یې موقعیت درلود، د نوموړې د امپراتورۍ مرکز غزنی وو، د هغه د سترو او فاتحو سپه سالارانو له جملې څخه یو محمد بختیار خلجي دی، چا چې له سلطان شهاب الدین غوري سره په ګڼو جهادونو کې برخه اخسته وه، په اخیر کې د شرقي هند د فتحې قومندان وټاکل شو، نوموړي د سلطان شهاب الدین غوري له امر سره سم د شرقي هند په فتحې لاس پورې کړو، د هند تر وروستي برید بنګال پورې یې د خپلو فتوحاتو لمن پراخه کړه او د اسلام بیرغ یې هلته او په پای کې یې د چین په مشهور ښار تبت د حملې لپاره ځان چمتو کړو، خو پایلې یې منفي وې.

د طبقات ناصري مؤلف منهاج سراج جوزجاني، چې اصلاً د افغانستان د غرجستان (میمني) دی او د غور په سیمو کې لوی شوی او د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري همعصره دی، نو ځکه د هغه د عصر پېښې او اشخاص ټول ورته ښه معلومیدی.




**د محمد بختیار خلجي پیژندنه:**

جوزجاني د سپه سالار محمد بختیار خلجي ((د خلجي کلمه چې اول توري یې (خ) ده د پښتنو د یو ټبر د پاره استعمال شوی او د هغه قوم نوم ؤ. چې د سلطان شهاب الدین غوري په لښکرو کې هندوستان ته تللی وو او د هند ختیځې سیمې هم د همدغو پښتنو فتح کړې او بل وخت یې په ډیلې کې پر ټول

هندوستان حکومت کړی دی او د خلجي نوم په هند کې د دغو پښتنو د پاره استعمال شوی د. د پېښور په (جمهوریت) نومې مجله کې دا پښتانه چې په هند کې یې حکومتونه کړي. او د (خلیجو) په نامه بلل کیدل د (غلجیو) په نوم ذکر او لیکلې دې او لیکې چې دا طایفه د پښتنو خورا لویه طایفه ده یعنې وایي چې هغه پښتانه چې په هند کې دخلجیو په نامه بلل شوي دې همدا غلجي پښتانه دي چې په افغانستان کې بې د غلجیو په نامه د (غ) په حرف بولي. او په پښتنو کې همدا د غلجیو طایفه ډیره لویه طایفه وه بل دا چې له غلجیو څخه پرته د خلجیو په نامه هچیرې څوک نشته چې څوک ووایي چې خلجیان دا دي.

ځینې مستشرقین لکه توماشک، وایي (غر) پخوانۍ اریایې کلمه ده چې د غرج، خرج او غرش کلمې له دغې کلمې څخه ماخوذي دي چې وروسته خلج شوې او په ځینو ځایو کې یې غلج وایي او غلزي غرزي او غلجي یه نامه مشهورې شوي دي. بارتولد وایي: میرویس (د خلجیانو مشر) په (۱۷۰۹ع) کال کې پر کندهار بر شو او خبره یې دې حد ته ورسوله چې د ده زوی محمود شاه په ۱۷۲۲ کې ایران ونیو او د ایران ټولواک هم شو (کابل مجله (۱۳۳۸-۳ګڼه). یعنې ښاغلي توماشک، واضح کړې ده چې د غرج- خلج او غلج کلمې سره یو دي او مصداق یې هم یو دي چې کله غرج کله خلج او کله غلج ویل شوي دي او ښاغلي بارتولد، هم د میرویس طایفه غلجیان د (خلجیانو) په نامه یاد کړي دي ګواکې خلجي او غلجي یې سره یو بللې دي. د تاریخ فرشته مؤلف هم د جلال الدین خوارزمشاه او ناصر الدین قباچه او شمس الدین التمش د احوالو د یادونې په ترځ کې دوه، درې ځایه د غزنې غلجې پښتانه د (خلجیانو) په نوم یاد او لیکلې دي د (غ) په عوض یې د (خ) توري لیکلی دی نو څرګندیږي چې همدا پښتانه چې په پښتو نخواکې د غلجیو په نوم یادیږي، په هغه عصر کې په هند کې د (خلجیو) په نامه یادیدل) په باب کې داسې لیکلې دي:

محمد بختیار خلجي اصلاً د غور او ګرم سیر د خلجیو څخه ؤ. او نوموړی د شجاعت او میړانې خاوند، پیاوړی او په کار پوه سړی ؤ.

او وایي: هغه وخت چې سلطان شهاب الدین غوري په غزنې کې پاچا ؤ، محمد بختیار خلجي له خپل ځای څخه غزنې ته راغی، په (دیوان عرض) کې یې د خپلې مقررې او وظیفې اجرا کولو غوښتنه وکړه، خو د دیوان عرض د آمر له خوا د ده دا غوښتنه ونه منله شوه نو دې د غزنې څخه هندوستان ولاړ. (طبقات ناصري د کابل چاپ ۴۹۷ مخ ۲۹۲ مخ)

د طبقات اکبرې مؤلف چې اصلاً د افغانستان د هرات د سیمې دی خو په هند کې زیږیدلی او په هند کې لوی شوی دی، نوموړی مؤرخ په خپل کتاب کې د هندوستان د پښتنو پاچهانو او نوموتو اشخاصو په باره کې خورا ښه تحقیقات او ښې څیړنې لري. نوموړی مؤلف د محمد بختیار خلجي په باب کې داسې لیکي:

محمد بختیار خلجي (د غور او ګرم سیر د خلجیو له اکابرو او مشرانو څخه و) او لیکي: محمد بختیار خلجي ډیر شجاع، توریالی، سخې، ډیر هوښیار او د تدبیر او صائب فکر خاوند ؤ.

او وایي: چې محمد بختیار خلجي د سلطان شهاب الدین په وخت کې غزنې ته راغی بیا له هغه ځایه هندوستان ته ولاړ. (طبقات اکبرې ۲۳ مخ)

د محمد بختیار خلجي سپه سالارې

**د تاریخ هند مؤلف لیکي:**

په ۱۱۹٤ میلادي کال غوري سلطان شهاب الدین له نویو قوا و سره هند ته راغی او د (قنوج) پر ولایت یې حمله وکړه، د قنوج باچا (جیچندرای) په جنګ کې مړ شو او مملکت یې د سلطان شهاب الدین په لاس کې ولوید.

محمد بختیار خلجي چې د سلطان شهاب الدین نامتو او غښتلی سپه سالار ؤ.

د قنوج حاکم یې مقرر کړ او د هغه ځای د انتظام او ادارې د پاره یې (سا اخلو یو اندازه عساکر) پریښودل او پخپله شهاب الدین بیرته افغانستان ته ستون شو. (طبقات اکبرې ۲۳ مخ)

په تاریخ فرشته کې لیکي:

په دغه کال چې سلطان شهاب الدین غوري د قنوج او بنارس ښارونه فتح کړل نو موړي سلطان زیاتې لښکرې د هندوستان ختیځو سیمو ته واستولې او د بنګال تر اخیرنۍ برخې پورې ټول وطنونه دغو لښکرو فتح کړې. (طبقات فرشته دوهم ټوک ۲۹۲ مخ)

د هندې تواریخو مورخین چې د مسلمانانو له خوا د هند فتوحات یې لیکلې دي ټول متفق دي چې د شرقي هند او بنګال فاتح محمد بختیار خلجي ؤ ، چې سلطان شهاب الدین غوري د همدې سیمو د فتحې لپاره سر لښکر ټاکلی وو.

ویل کیږي چې محمد بختیار خلجي له قنوج څخه د شرق خوا ته روان شو (اوده) ته ورسید اوده کې (ملک حسام الدین اغلبک) والي ؤ په دغو سیمو کې محمد بختیار څو ځله د جنګ محاذ ته ولاړ او په جګړو کې یې ګډون وکړ.

محمد بختیار ښه سپور او د وسلې استعمال یې هم ښه زده ؤ، په حربي فنونو کې خورا ماهر و او سربیره پردې د فوق العاده شجاعت خاوند او ډیر زړور سړی ؤ.

د اوده، نائب الحکومه حسام الدین اغلبک ته چې د محمد بختیار شجاعت او توره معلوم شول، نو یې د (سلیتر، او سهولې) سیمې ده ته وسپارلې او په طبقات اکبرې کې لیکلې دي:

چې د (کنپله، او پټپالۍ سیمي اغلبک ده ته وسپارلې). (تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۲ مخ طبقات اکبرې ۲۳ مخ)

محمد بختیار ته چې د هند د شرقې سیمو فتوحات سپارل شوې وو، نو له همدې امله یې دا سیمې د خپل فعالیتونه لپاره مرکز وټاکلې.

وایي: محمد بختیار له دغه ځایه څخه د (منبره او بهار) خوا او ته مخه کړه او پر دغو سیمو یې یرغلونه شروع کړل څو په دغه وخت کې ډیر اسونه او وسلې محمد بختیار ته په لاس ورغلی او پوره قوت ورته حاصل شو او په لږه موده کې د لوی قدرت خاوند شو. (تاریخ فرشته دوهم ۲۹۲ مخ)

کله چې د محمد بختیار د پیاوړتوب او فتوحاتو اوازې په هند کې خپور شو، او هرې خوا ته دا انګازې ورسیدې چې محمد بختیار خلجي د هندوستان شرقې خوا ته مخ کړې ده او په ټولو جګړو کې بریالی دی.نو په هندوستان کې د خراسان، غور او غزنې خلک مخصوصاً د ده قوم خلجیان چې د ده له بهادرۍ څخه خبر شول، د غزا په نیت یې د ده خوا ته مخه راونیوله، ډیر زیات توریالې او جګړن محمد بختیار ته راغلل او د ده په لښکرو کې شامل شول.

د ډیلې والي سپه سالار قطب الدین ایبک محمد بختیار ته انعام او تحسین نامه واستوله

کله چې د سپه سالار محمد بختیار د بریالیتوب خبر د ډیلې والي قطب الدین ایبک ته ورسید ، نو قطب الدین محمد بختیار ته د ده د دلاورۍ او عالي همت له امله انعام او تحسین نامه واستوله.

محمد بختیار ته د نورو مجاهدینو راتلو او د ده په لښکرو کې د هغو ګډون او د ډیلې د والي قطب الدین انعامونه او تحسین نامې، د محمد بختیار د زړه قوت نور هم زیات کړ او د غزا او فتوحاتو هوس د ده په دماغ کې ښه ځای ونیو ، نو یې د بهار خوا ته نوره هم توجه زیاته او خپل یرغلونه یې قوی کړل او تقریباً تر دوو کالو پورې د محمد بختیار یرغلونو د بهار پر ولایت باندې دوام وکړ. (طبقات ناصري د کابل چاپ ۲۹۷ مخ تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۲ مخ)

**د بهار فتح**

که څه هم د بهار ((بهار په هندې بنګالې ژبه مدرسې ته وایي. د هغه ښار اساس په اول کې مدرسه ؤ. او هغه ځای د علم معدن ؤ نو یې بهار نوم پر ایښی دی طبقات ناصري ۴۹۷ مخ تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۲ مخ).) پر ښار د سپه سالار محمد بختیار یرغلونه ډیر اوږده شول خو د ده په عزم او اراده کې سستې رانغله، هر وخت به یې خپلې لښکرې چمتو ساتلې او په جګړو بوخت ؤ چې څو یې په پای کې د بهار ښار محاصره او فتح کړ (۵۹۹ ه ق).

د طبقات ناصري مؤلف منهاج سراج جوزجاني وایي:

په (٦٤١) هجري قمري کال زه په هند کې د ګرزیدو (سیاحت) په ضمن کې (لګهنوتې) ته ورغلم، هلته مې له

(صمصام الدين) فرغانوي سره ملاقات راغی، نوموړی یو عالم او پوه سړی ؤ. زه یې خپل ځای ته بوتلم، له هوساینې او آرامۍ څخه وروسته ده ما ته د سپه سالار محمد بختیار غازي د جهاد او ماجراګانو نقل او قصه وکړه، په دې ډول:

ده وویل مونږ دوه ورونه وو، یو نظام الدین او بل صمصام الدین نومید، اصلاً موږ د ماوراء النهر د فرغاني یو. موږ دواړه د سلطان شهاب الدین غازي په مجاهدینو کې د اسلام له لښکرو سره هندوستان ته راغلو.

دلته دواړه ورونه د محمد بختیار په خدمت کې ودریدو، او د هغو مجاهدینو په جمله کې موږ دواړه ورونه په جنګ کې ښه لایق او پوره سربازان وو، کوم وخت چې د اسلام لښکرو د بهار حصار کلا بند کړ، محمد بختیار غازي چې ډیر زړور او د فوق العاده شجاعت خاوند ؤ. پخپله یې د هغه حصار پر دروازه حمله وروړه او د هغه ځای د شدیدې جګړې اورته یې ځان وغورزاوه. له زیاتو خونړیو او شدیدو جګړو څخه وروسته مسلمانان بریالي شول، دغه حصار فتح شو (۵۹۹ هـ).

محمد بختیار خلجي پهلواني او دلاوري

د بهار له فتحې څخه وروسته محمد بختیار ډیلي ته راغی، د ډیلي والي قطب الدین ایبک د هغه تود هرکلی وکړ، وایي چې په ډیلي کې د محمد بختیار د دلاورۍ او شجاعت او پهلوانۍ خبرې کیدې او قطب الدین له خوا د هغه اعزاز او فوق العاده نمانځنې پر نورو امراوو، باندې تاثیر وکړ، چې پر هغو باندې د محمد بختیار تفرق څرګندیدو، د هغوي په زړونو کې له ده سره رخه پیدا شوه.

په دې وخت کې د قطب الدین په دربار کې د یو مست پیل یادونه وشوه چې هیڅ پیل د هغه د مقابلې تاب او طاقت نلرې.

محمد بختیار وویل: دا پیل زه ماتوم، نو یې خپل ګرز راواخیست هغه پیل ته ورغی مست پیل ورباندې راغی، خو محمد بختیار چې یو ګرز د هغه پر خلتم ورکړ، خلتم یې ورته په یوه ګذار دوه شقه کړ، پیل په بغارو وتښتید.

د محمد بختیار د قوت او زړورتوب دا منظره چې ولیدلې شوه، قطب الدین او ټول خلک ورته حیران پاته شول، او د ده پر شجاعت او دلاورۍ یې افرینونه وویل او قطب الدین ته یې زیات انعامونه ورکړل.

د محمد بختیار دا دلاورۍ او د پیل ماتول هم په هغه ډول وو، لکه چې د بهرام شاه غزنوي او د سلطان علاء الدین حسین غوري تر منځ جګړو کې چې د نوموړې سلطان حسین غوري (خرمیل) نومې پهلوان، د بهرامشاه جنګې پیل وواژه او غلیم یې مات کړ (طبقات اکبرې ۲۳ مخ طبقات ناصري د کابل چاپ ۴۹۸ مخ، تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۳ مخ).

محمد بختیار بیرته له ډیلې څخه راوګرزید بهار ته راغی.

**د نودیه د ښار فتح**

په دا بل کال (۶۰۰) هجرې کې محمد بختیار خپلې لښکرې تعبیه کړې او پر لکهنوتې باندې د یرغل په عزم د (نودیه یا نودیار) د ښار خوا ته وخوځید.

وایي: کله چې ښار ته نژدې شول، نو محمد بختیار له څو محدودو سپرو سره له خپلو لښکرو څخه جلا شو، او په عادي ډول ښار ته ورغلل، خلکو ګمان کاوه چې دا به د اسونو سودا ګران وې، او په چټکۍ سره نورې لښکرې هم پسې ورغلې پر ښار یې حمله وکړه، ښار یې ونیو. او د هغه ځای راجا (رای لکهمینه) وتښتید، او په آسانۍ سره دا ښار د مسلمانانو په لاس کې ولوید. له دغې فتح څخه ډیرې شتمنۍ، خزانې او پیلان د محمد بختیار په لاس ورغلل، چې له دغې لیارې د ده اقتصادي وضعیت ډیر ښه او عسکرې قدرت یې ډیر زیات شو. (طبقات ناصري د کابل چاپ ۴۹۹ مخ، تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۳ مخ)

**لکهنوتې**

د لکهنوتې ولایت چې د هندوستان په ختیځو سیمو کې پروت دی ځینې مورخین یې په دې ډول وایي: لکهنوتې د (کور) او (بنګال) له سیمو څخه د لوی سیند تر غاړې پورې سیمو څخه عبارت دی. او ځینې وایې: چې له کور څخه د بهار تر سرحد پورې لکهنوتې دی، او له کور څخه تر بنارس او د لوی سیند تر غاړې پورې بنګال دی او هغه ته بنګ هم وایې.

او وايي: چې محمد بختيار د لکهنوتې او بنګال د نيولو دپاره ډير کوششونه وکړل. (تاريخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۳ مخ)

د محمد بختيار خلجي پادشاهي او د ده د پادشاهی مرکز:

په تاريخ اکبري کې ليکي:

هغه وخت چې د سپه سالار محمد بختيار خلجي د تورې او فوق العاده شجاعت او د ده فتوحاتو خبر ډيلي ته ورسيد، نو قطب الدين ايبک محمد بختيار ته تحسين نامه او د (پاچاهی تشريف او د سلطنت لوا واستول). او له هغه وروسته محمد بختيار پر لکهنوتې حمله وکړه او د هغه ولايت ښارې چې (نوديا ريا نوديه) نوميد ونيو.

او په لکهنوتې کې يې نوی ښار ودان کړ او دا نوی ښار د (کور) په نامه مشهور دی، دا ښارېې د خپل ځان دپاره پايتخت وټاکه کوم چې اوس خراب شوی دی. او په لکهنوتې کې محمد بختيار خلجي پاچا شو او خطبه يې پر خپل نامه وويله او سکه يې هم پر خپل نامه وايسته. او په دغو سيمو کې يې مساجد او خانقاګانې او مدرسې تاسيس او ودانې کړې. (طبقات اکبرې ۲۳ مخ)

په تاريخ فرشته کې ليکي:

محمد بختيار چې د لکهنوتې د ولايت پايتخت د (نوديه) ښار ونيو او د لکهنوتې د ولايت نورې سيمې او د بنګال اکثره برخه يې ونيوله، نو د هغه ولايت د پخوانې پايتخت د (نوديه) د ښار په عوض يې د بنګاله په سرحد کې د (رنګپور) (د رنګپور ښار هم د پښتنو د حکومت له يادګارونو ځخه دې) په نامه بل ښار بنا او ودان کړ او دا نوی ښار يې د ځان د پاره دار الملک وټاکه او په دغه ښار او نورو ولاياتو کې نو موړې محمد بختيار مساجد او خانقاګانې او مدرسې جوړې کړې او خطبه او سکه يې پر خپل نامه جارې کړه. (تاريخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۳ مخ، طبقات ناصري د کابل چاپ ۵۰۰ مخ)

پر لکهنوتې باندې د محمد بختيار حمله او د نوديه د ښار نيول په (۶۰۰) هجرې قمرې کال کې عملې شوی دی، نو له همدغه تاريخ څخه د محمد بختيار خلجي د پاچاهی تاريخ تعينيږي.

د تبت خوا ته د محمد بختيار خلجي لښکرکشې

کله چې پښتانه امپراتور سلطان شهاب الدين غازې داسې ستر او مهم فتوحات وکړل او د هندوستان پراخ او ډير لوی او زيات نفوس لرونکی هيواد يې فتح کړ او د پښتنې لښکرو د مټ په زور دا مهم کارونه انجام شول.

او محمد بختيار خلجي چې له هغو بهادرو پښتنو سپه سالارانو څخه ؤ، چې په هر ميدان کې به بريالی او فاتح ؤ، د هندوستان ټولې ختيځې سيمې د هندوستان تر اخرنۍ کرښې پورې په يوازې تن فتح کړلې او اسلامې حکومت يې په هغو وطنو کې تاسيس کړ او دا ډول اسلامې اساسونه يې هلته وضع کړل چې تر نن ورځې پورې باقې پاته دي، د هغه سيمو انسانان يې له ناوړه عقائدو او توهماتو څخه وژغورل او په اسلام مشرف شول.

محمد بختيار چې په ذکر شوو سيمو کې زيات ځواک تر لاسه کړو، او د مقابلې يې څوک نه ليدل، تر لرې واټن پورې د هغه واک چليدو، نو په ذهن کې يې د نور پر مختګ سودا پيدا شوه، د سلطان شهاب الدين غوري دا لښکري چې له غزنې څخه را وتلې وي، د بنګلديش تر سمندر پورې يې چا مخه نه وه ډب کړې، نو يو لوري ته سمندر بل لوري ته د چين پراخه هيواد وو، چې د تبت مشهور ښارېې د نورو په نسبت په نزدې واټن کې پروت وو.

د خپل پايتخت او نورو ولاياتو له انتظام برابرولو څخه چې خلاص شو. نو يې (د طبقات ناصري په قول لس زره او د تاريخ فرشته په قول دوولس زره انتخابي پياوړي سپاره) تيار کړل د تبت خوا ته وخوځيد. (طبقات ناصري د کابل چاپ ۵۰۰ مخ تاريخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۴ مخ)

د محمد بختيار لارښوونکې

تاريخ فرشته ليکي:

د هماليې د غره په جنوبې خوا کې په دغو سيمو کې چې کومو خلکو استوګنه لرله دري لانديني طايفي وي: (يوه يې منج بله يې کونج او دريمه يې تهار نوميدله)، د منج د طايفې مشر چې د هندوستان سرحد ته نژدې وو، محمد بختيار ته

راغی او د اسلام دین یې قبول کړ. او د دغه سړي نوی اسلامي نوم یې (علي منج) کېښود او په همدغه نامه مشهور شو.
محمد بختیار چې د تبت خوا ته لښکري رواني کړي همدغه علي منج نومي شخص په هغو غرو کې د دوی لارښوونکی ؤ. (تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۴ مخ)
د محمد بختیار لښکرې د دغه سړي په لارښودنه د هندوستان او تبت تر منځ غرو کې ننوتلې او په دغو غرو او درو کې یو لوی سیند ته ورسېدل.
په طبقات ناصري کې د دغه سیند نوم (بنګمتي) لیکلی دی او تاریخ فرشته د دغه سیند نوم (تیمګری) لیکلی دی او طبقات اکبري د هغه نوم (بتکمدي) وایي.
د دغه سیند لوی والی او سور او ژوروالی د هندوستان د مشهور سیند (ګنګ) څخه دري چنده زیات وو، او د لمر خاته خوا ته بهېدو. (طبقات ناصري ۵۰۲ مخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۴ مخ طبقات اکبري ۲۴ مخ).
محمد بختیار د نوموړي علي منج په رهنمایي د دغه سیند پر غاړه غاړه پورته روان وو، لس ورځې یې په دغو غرونو کې مزل وکړ، څو یو ځای ته ورسیدل چې پر دغه سیند باندې له تراشلو ډبرو څخه یو پوخ او محکم پول جوړ شوی ؤ. او داسې مشهوره وه چې دا پول په پخوا زمانو کې (ګرشاپ) نومي پادشاه جوړ کړی دی.
محمد بختیار د دغه پول د محافظت د پاره دوه نفره عسکري افسران چې یو ترک او بل یې خلجي وو، له یوې اندازې عساکرو سره پرېښودل تر څو د دوی د بېرته ستنیدو پورې د پول حفاظت وکړي او خپله پرې واوښت.

د محمد بختیار ته د کامرود د پاچا پیغام

دا سیمې د کامرود وې او د دغو سیمو رای (پاچا) (طبقات اکبري د کامرود د پاچا نوم (بتمکدي) لیکلی دي طبقات اکبري ۲۴ مخ د کامرود د سیمې به دا د اوسني نیپال سیمې وې چې د تبت او شرقي هند تر منځ دي) چې د محمد بختیار نوم اوریدلی ؤ او د ده له شجاعت او فتوحاتو څخه خبر وه او د ده له دغه عزم څخه خبر شو، نو یې محمد بختیار ته استازی راواستاوه او دا ډول پیغام یې ورته راواستاوه:
دا عزم چې تا کړی دی او غواړې چې د تبت مملکت فتح کړې، دا کار ستا په موجوده عسکرو سرته نه رسیږي، ځکه هغه ځای زیاتي جنګې کلاګانې او ګڼ فوځونه لري.
ښه داده، چې اوس بیرته وګرځې او پوره قوه برابره کړې په آینده کال کې به زه هم خپلې لښکرې تیاري کړم او ستا له لښکرو سره به یو ځای شم، او په دغه ډول سره به هغه وطنونه په لاس راولو، خو محمد بختیار د کامرود، د رای پیغام ونه مانه، د تبت خوا ته پسې روان شو (طبقات ناصر ۵۰۲ مخ تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۴ مخ طبقات اکبري ۲۴ مخ)
منهاج سراج جوزجاني لیکي
په (۶۴۱) هجري کال زه بنګال ته ولاړم، په لکهنوتي کې د محمد بختیار خلجي د همرکاب (مقبل معتمد الدوله) ځای ته ورغلم. یوه شپه د هغه کره میلمه شوم. نوموړي مقبل داسې نقل راته وکړ:
محمد بختیار غازي چې د دغه لوی سیند څخه تیر شو زه ورسره وم، پنځلس ورځې مو د جګو جګو غرونو په منځ کې مزلونه وکړه، په لوړو او ژورو به خاتو لویدو شپاړسمه ورځ یوې هوارې سیمې ته ورسیدو او دا مځکه خورا ودانه او معموره وه، ښه آباده کلي او کلاګاني یې لرلي، لومړی چې یوې کلا ته ورسیدو، په هغه ځای کې زموږ او د هغه ځای د خلکو تر منځ جګړه ونښته او د هغې کلا او خوا وشا خلک په ډیره چټکۍ سره مقابلې او جګ ته راورسیدل نو جنګ شروع شو، له ګهیځ څخه تر مازدیګره پورې جګړه جاري وه. او زموږ له لښکرو څخه ډیر نفر مړه او ټپیان شول او نور ډیر ستومانه او ستړي شول. د هغه ځای خلک ټول ښه جګړن او توریالي وو او د جنګ د پاره یې خورا ښې وسلې درلودلې.
چې شپه شوه، زموږ لښکرې خپلو ځایو ته راغلې. او کوم اشخاص چې زموږ لاس ته بندیان راغلي وو، محمد بختیار خپل حضور ته وروغوښتل پوښتنې یې ورڅخه وکړې هغو کسانو داسې بیان وکړ:

(له دې ځای څخه پنځه فرسنګه لیرې زموږ ښار دې چې هغه ته (کرمپتن) وایې او په دغه ښار کې هر وخت پنځوس زره جګړن موجود دي او په دغه مملکت کې په زرهاوو، بلکه په لکونو جګړماران او توریالې او سیږي، کوم وخت چې ستاسې لښکرې دلته راورسیدې په فریاد او په ډیره چټکۍ هغه ښار ته سړی ولاړ چې هغوي خبر کړي او ګهیځ به هغوې سپاره دلته ځانونه راورسوې).

محمد بختیار چې د دغه ځای د خلکو او له جګړه ولیده او نوره پوښتنه یې وکړه او په ړومبۍ ورځ د ده له لښکرو څخه ډیر نفر شهیدان او زخمیان شول او نور عساکر هم ډیر ستړي او خسته شوې وو.

نو یې له خپلو افسرانو سره مشوره وکړه او داسې پریکړه یې وکړه: (موږ باید اوس بیرته وګرځو او هلته پوره او مکمله او له هره حیثه کافي قوه برابره کړو بیا نو دې هیواد ته راشو.).

نو محمد بختیار بیرته راکوچ شو. له تبت څخه د کامرود تر هیواد پورې پنځه دیرش غاشي (کوتلونه) او ډیرې ژورې او درې وې، په لیاره او دغو لوړو ژورو کې چې زموږ لښکرې راتللې د دغو ټولو لیارو وابه، بروږ او نور شیان چې زموږ او زموږ د حیواناتو د پاره په کاریدل، ټول تلف او سوځول شوی وو، او د دغو لیارو او درو اوسیدونکي هم ټول لیږدیدلي او له لیارې څخه وتلې وو.

او په دغو پنځلسو ورځو کې د اسونو او غاترو د پاره یو من خوراکه پیدا نه شوه او د خپل خوراک د پاره به مو اسونه حلالول خوړل به مو، چې څو په زیات مشقت او کامرود د سیمې ته راورسیدو او هغه پول ته راغلو).

ناوړه پیښه

په دې وخت کې چې هغه لوی سیند ته راورسیدو، د هغه پول دوې مورې نړولې شوې او خرابې شوې وې او هغه دوه نفره افسران چې د هغه پول د ساتنې د پاره محمد بختیار پرې ایښې وو، پخپل منځ کې سره وران او خپه شوې وو، پول یې پرې ایښی ؤ دوی تللي وو.

(او د خورا لوی ګناه او ستر خیانت مرتکب شوې وو) دا دوه نفره افسران او عسکران چې تللې دې د هغه ځای (کامرود) خلک راغلې دې دا پول یې خراب او نړولی دی.

محمد بختیار چې دغه ځای ته راغی ګورې چې پول خراب شوی دی او کومه بیړۍ او نه اوبو څخه د پوریوتلو وسیله هم نشته، نو هک پک پاته شو.

محمد بختیار وویل: یو ځای به میشت شو او د کومې کښتۍ او یا جالې تدبیر به وکړو. په دغه حد کې نژدې یو معبد ؤ. چې یوه لویه کلا یې لرله، د محمد بختیار لښکرې دغې کلا ته ورغلې په هغې کلا ننوتلې. په دې وخت کې د کامرود، رای خبر شوی دی چې د اسلام لښکرې ډیرې عاجزه او استومانه او زیله شوې دې، نو یې د هغه ځای ټولو بت پرستانو ته امر کړی دی چې د اسلام لښکرې عاجزې شوې دې ورشئ مقابله او مقاتله ورسره وکړئ.

نو د هغه ځای خلک ډله ډله راتلل په دغه معبد باندې راوګرزیدل او دا کلا یې محاصره کړه.

خو د محمد بختیار لښکرې په یوه وار راووتل سخته حمله یې پر هغو باندې وکړه، د کفارو محاصره یې ماته کړه او ټول هغه ځایه بیرته راووتل، د سیند غاړې ته راغلل د سیند پر غاړه یې واړول. دلته له اوبو څخه د پوریوتلو د وسائلو په پلټنه کې وو، چې ناڅاپه یو عسکر پر آس سپور شو، په اوبو کې یې آس کډ کړ او د غیشې داړناو په اندازه د سیند منځ ته ورسید. یوه پلا په لښکرو کې ناره شوې چې اوبه لږې دي آس نه ډوبوي. نو ټول عساکر پر اسانو سپاره شول اسان یې په سیند کې ګډ کړل. په دې حال کې د کامرود کافران د سیند غاړې ته راغلل د اوبو غاړه یې ونیوله.

زموږ عساکر چې د اوبو منځ ته ورسیدل دا لته ګوړباهې (غرقاب) ؤ، ټول ډوب او غرق شول.

پخپله محمد بختیار او نور لږ نفر په ډیر زحمت ووتل نور ټول هلاک او د هغه سیند شومه شول. محمد بختیار له خپلو پاته ملګرو سره د (دیو کوټ) ښار ته راغی په دغه ځای کې له زیات غم او خپګان څخه سخت مریض شو.

او په دغه ځای کې چې د نورو مسلمانانو کورونه وو، او د هغو عساکرو چې په دغه لیار کې تلف شوي وو، ښځې او اولادونه دلته وو، محمد بختیار ته به یې ښیرا او ښکنځلې کولې او د هغو د ښیرا وو، او ښکنځلو له امله محمد بختیار د باندې نشو راوتلای د ننه به په بستر کې پروت ؤ. په دغو وختونو کې په محمد بختیار مکرر ویل: (لکه چې سلطان غازي معز الدین محمد سام (شهاب الدین غوري) ته کومه پیښه او مصیبت رسیدلی دی، چې زما بخت وګرزید).

په طبقات اکبري کې لیکلې دي: چې رښتیا هم په همدغه مهال سلطان معز الدین غازي په شهادت رسیدلی ؤ او محمد بختیار پسې ناجوړه او په بستر کې ولوید او وفات شو. (طبقات ناصري د کابل چاپ ٤-٥-٥-٥-٥٠٦ مخونه)

تاریخ فرشته لیکي:

محمد بختیار خلجي چې وفات شو د ده جنازه یې له دیو کوټ څخه بهار ته نقل کړه او هلته یې مزار جوړ شو. (تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۵ مخ)

ټول مورخین وایي چې محمد بختیار له څو محدودو نفرو سره د (بتکمندۍ) له سیند څخه نجات وموند، نو یو کوټ ته ولاړ، هلته له زیات غم او غصې څخه مریض شو.

او نو موړي به ویل: (لکه چې سلطان غازي معز الدین ته کومه پیښه رسیدلې ده چې زما طالع وګرزیدې).

او معز الدین غازي رښتیا هم په دغو ورځو کې شهید شوی ؤ (٦٠٢ هـ) او محمد بختیار هم په دغو ورځو کې د هغې مریضې په اثر په بستر کې وفات شو (٦٠٢)(طبقات اکبري ٢٤ مخ) که څه هم د سلطان شهاب الدین غازي پیاوړی او نامتو سپه سالار محمد بختیار په وروستیو وختونو کې ناکام او نیمه خوا شو، خو د نوموړي نوري کارنامې د مسلمانانو د پاره خورا لوړ افتخار ګڼل کیږي او د پښتنو په تاریخ کې یو غوره او د ویاړنې وړ باب دی!

د محمد بختیار ځینې خواص:

وایي: د محمد بختیار خلجي لاسونه ډیر اوږده وو، چې خپل لاسونه به یې کښته وغزول له ځنګنو څخه به یې کښته تیریدل. نوموړی ډیر سخې او جواد سړی ؤ او هم د فوق العاده شجاعت او دلاورۍ خاوند او ډیر توریالی ؤ.

ویل کیږي، چې نوموړي به له بندیانو سره په زړه پوري چلند کول، شخصي دښمنان او د خپل حکومت باغیان به یې اکثر معاف کول، له جنګ څخه پرته د بندیانو په قتل کې به یې ډیر احتیاط کول، له خپل رعیت سره یې خورا زیاته مینه وه. تل به یې د هغوی د هوسایني فکر کول، نو ځکه یې د خلکو په زړونو کې ځای موندلی وو. محمد بختیار په دغو وختو کې خپله نیک خوی او حسن اعتقاد ټولو خلکو ته ښکاره کړل. (طبقات ناصري د هند چاپ ١٤٦ مخ تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۳ مخ)

تاریخ فرشته لیکي:

محمد بختیار خلجي لومړی اسلامي پادشاه ؤ. چې په ختیځ هندوستان کې یې اسلامي شعائر جاري او نافذ کړل. (تاریخ فرشته دوهم ټوک ۲۹۲ مخ)

# څلوریزه

سیف مومند

**هر یو باب مې د ننګونو عبارت دی**
**لړ مې ولوله دستر افغان تاریخ یم**

**هیڅ غاصب تر ستوني نه یمه تېر کړی**
**سیف مومنده له زقومونه هم تریخ یم**

# گلځونه

## دزغم پیمانې

فدامحمد ''محسني''

ګورځ پـه هنـر بانـدي خپـل وار اخلـي
خلـک د لرګـي نـه داسـي کـار اخلـي

تاسـي د تـاريخ فلسـفه وګـورئ
زوی چـي کلـه لـوی شي،نوم د پـلار اخلـي

دوی،د دوی راتـګ تـه ښـه راغلـي وايـه
اوس بـه جنـازه د هغـه يـار اخلـي

زمـوږ چـي پيمـانې د زغـم راډکـې شـي
صـورت مـو داسـي اور، لکـه چنـار اخلـي

ځـرک د ډېـره وختـه وې نـاهيلي شـوې
وار د محسـنـي دی ،دا دی وار اخلـي

## مجاهد وشمشیر

حبیب الله یوسفزی

مجاهـد وشمشـیر دوتـا یـار دیرینـه انـد
دران کـوه و صـحرا بـا سـینه ایـی پرکینـه انـد
نـه مـذموم باشـد ایـن سـینه هـای پـر کینـه
چـو" شـدت" و" غلظـت" در قـرآن دیـده انـد
پـر از غـیظ و خشـم اسـت هـر دیـده غـازی
غـم و سـوز امـت را چـو هرجاشـنیده انـد
بـه دسـتان گرفتندشمشـیر های مسـلول
نگـردد کنـد سـیفی کـه ایـام فـتح دیـده انـد
بـرو مـرد غـازی زنامـت دشـمن در فریـاد
مبـارک آن غبـاری را کـه پاهایـت چیـده انـد
صـد شـب بیداربـه ذکـر و نالـه تـا اسـحار
نیـرزدآن دم غـازی کـه دشـمن راکوبیـده انـد

## د آریانا فاتح

قاري سعيد – په کابل کې دسي آی اي په مرکز دبريد په مناسبت

اسمايي تاخو ليدم
ځنګه په هسکه غاړه
په موسکو سترګو په متينو ګامو
او په قوي اراده
د تور صليب په مورچل وختمه
د اريانا په ميلمه پال غولي مې
دنابللي اشغالګر وېره شړه لمبه کړه
دا درانه افغان سنګين غولی
دسپکوور کو اشغالګرو طبيله خو نه ده
دلته چې څوک هم دي راغلي داشغال په موخه
يا لته بند ترې نه مرۍ پرې کړې
يا په ميوند ترې بيرغونه پاتې
يا د سپين غر وريبو باښو ترينه بوټي خوړلي
ياله خيبر ياله کوړک يې سرلاټې خوړلي
دا د باعزمه باايمانه افغانيت ټاټوبی
څه د (ډوبينز) رحم ته پاته ميراڅه خو نه ده
د کيوناري دمکناټن دهيلو دا هديره
څه د CIA دیابوګانو طبيله خو نه ده
داد اسيا په زړه کې شين ، دا غرونه غرونه هيواد
څه داطلس بې نام نښانه جزيره خو نه ده . . .

. . . . . . . . . . . . .

اسمايي تاخو ليدم
چې دايمان دلوړتابه بيرغ مې
ځنګه په نره ، په مړانه ، په قوي اراده
داريانا په زړګي وړپاوو
څوک دي چې زما توغ ته په ټيټه ګوري
ښايي لا زه يې پيژندلی نه يم
دوی چې له مرګه څومره کرکه لري
موږ په همدومره مينه ځغلو دابد ترغيږې
دا داحد دادخيبر بيرغ
داد مصعب داد جعفر بيرغ
تل به رپاندوي دافغان په مينه
تل به بلوسيږي د شيطان په مينه
تل به بلوسيږي دشيطان په مينه

2013/6/25 ميلادي

مرسته مې ورسره کړې وای ، نو دمجاهدينو ضرورت او زما بې وسي سخت اغيز راباندې وکړ ، په همدې حالت کې کور ته لاړم کله مې چې ميرمنې وليدلم ، چې ولې مې طبيعت خراب دی ، نو ما ورته وويل چې مجاهدين داسې په سختو حالاتو کې او مالي تنګسيا کې دي ، چې زما فکر يې ډير خراب کړ ، په دې وخت کې مې ښځه چې کله دمجاهدينو له دې حالت نه خبره شوه ، نو لاړه خپل دغاړې اميل چې له زرو جوړ شوی وو او له ډيره وخت يې په ډير احترام ساتلی وو ، راوايې خيست ماته يې راکړ ، چې دغه اميل مې دالله تعالی په لاره کې بښلی دی ، ورشه خرڅ يې کړه او پيسې يې مجاهدينو ته ورسوه ترڅو يې په خپلو ضرورياتو ولګوي .

دغه راز يوه بله پيښه زما دخپلو سترګو مشاهده ده ، په يوه لرې پرته سيمه کې موږ له څو تنو سرمايه دارو خلکو سره ناست وو ، او ددوی مرستې مو تسليمولې ، په کوم ځای کې چې موږ ناست يو ، همدلته ددې ځای څښتن يوه څاه وباسي او مزدوران يې په کار اچولي دي ، په دوی کې يو سپين ږيری کارګر چې په ۲۰۰۰ روپۍ مزدور دی ، سترې ستومانه له څاه څخه راوخوت ، په داسې حال کې چې سخت ستومانه وو او خولې ورباندې راماتې وې ، زموږ په خوا راغی ، کله چې پوه شو ، چې دغه خلک دمجاهدينو دمالي کميسيون غړي دي ، او د جهاد لپاره مرسته ټولوي ، نوموړي سپين ږيري مزدورکار خپل دکار څښتن ته وويل چې زما ۲۰۰۰ حق الزحمه زه دالله تعالی په لاره کې بښم ، نو دغه پيسې دوی ته ورکړه چې په في سبيل الله جهاد کې يې مصرف کړي.

دغه مرستې چې زموږ مسلمان ورونو او خويندې يې په ډير اخلاص ، په پټه او يوازې دالله تعالی دکلمې داعلاء لپاره ترسره کوي ، ډيرې له برکته ډکې وې ، چې الله تعالی ورباندې داسلامي امارت جهادي کار جاري ساتلی دی ، او دادی چې په برکت يې دنړۍ ترټولو مغرور اقتصاد د زوال حد ته رسيدلی دی.

**پوښتنه :**

ځيني خلک چې غواړي دالله تعالی په لاره کې مال صدقه کړي ، نو زياتره وخت په دې کې متردد وي ، چې په کومه برخه کې مال صدقه کړي ، مثلا له فقيرانو سره مرسته وکړي ، له مدارسو او مساجدو سره مرسته وکړي ، يا په نورو برخو کې ، خو دوی چې بيا علماء کرامو ته رجوع کوي هغه ورته وايي چې په هره برخه کې ډير ضرورت وي او ډير خير پرې مرتب وي ، په هغه برخه کې مال صدقه کړئ ، په دې اړه تاسو څه واياست ؟

**ځواب :**

رښتيا هم ، نن سبا مسلمانان له خورا بد حالت سره مخامخ دي ، او په هره برخه کې دمالي صدقې ضرورت محسوس دی ، زما په نظر مهمه داده چې مالي صدقه پرځای ولګيږي ، او دمظلومو او مستضعفو مسلمانانو حوائج ورباندې رفع شي .

موږ چې په کومو برخو کې راټولې کړې پيسې مصرفوو ، نو هغه دحق دلارې هغه بې بضاعته او مخلص مجاهدين دي ، چې خپل ژوند يې دالله تعالی ددين لارې ته وقف کړی دی ، دنړۍ دخورا ظالم جابر او دجالي زبرځواک په خلاف جنګيږي ، په مقابل کې يې دباطلو قوتونو خورا ستر اقتصادي ځواکونه ولاړ دي ، خومجاهدينو په ډير اخلاص دالله تعالی ددين په رسۍ پنجې ښخې کړې دي او مقابله ورسره کوي ، دوی له اقتصادي نګاه په سختو حالاتو کې دغه مبارزه په مخ وړي ، تاسو فکر وکړئ همدا اوس د PKA ماشيندار يوه مرمۍ په ۳۰ روپۍ ده ، د آرپي جي راکت يوه مرمۍ په ۵۰۰۰ روپۍ ده ، يو ثقيل ماشيندار په پنځه لکه روپۍ دی ، نو له دې نه تاسو مصارفو ته سوچ وکړئ چې مجاهدين به په جګړه کې هره ورځ څومره مرمۍ مصرفوي او بيا به دا پيسې له کومه پوره کوي.

# غزل

سیداحسان الله الهام

چا دظلم مخه ونیوه غازیان شول
چا ظالم ته مخه ورکړه غلامان شول
چا سرټیټ کړ حقیقي غني بادار ته
چا شیطان ته سجدې وکړې بې ایمان شول
چا دسر په سودا خپل کړل ایمانونه
چا سودا کړل ایمانونه اربکیان شول
چا هسک سر یو ووړ ترداره قرباني شو
څوک دکفر ترجمان څوک جاسوسان شول
څوک نا حقه په څوا نې کي وژل کیږي
څوک وړوکي په ځانګو کي شهیدان شول
چا په کلي چاپه ښارکي دین پلورلی
څوک په غروکي دین ساتي قهرمانان شول
څوک خوشحال دي یرغلګر ته میلمه وایي
چا تباه کړل کمپائنونه فدایان شول
همیشه اوري رحمت په هغه قوم
چي طالب یا مجاهد یا مولویان شول
بیا نو بیل یې له ظالم څخه الهامه !
که په مرګ دي غم ځپلي مظلومان شول

## خرې پرې جزیرې

(عرفان الله عرفانی)

په وطن مو سیلۍ ګرزی شنې درې دي خرې پرې
دخزان ظالم دلاسه جزیرې دي خرې پرې
دعشق ګل بدرنګه ښکاري دښکلا کاروان ترې تللی
چې جانان مسافر شوی بس کوڅې دي خرې پرې
اوس دمینې مجلس نشته دغمونو سلسلي دي
چې یارانو کډې وکړې نن حجرې دي خرې پرې
ترینه پاتې شوه نیمګړی کتابونه لویه خدایه
طالبان دمینې لاړل مدرسې دي خرې پرې
دځوانانو جنازې دي دسروونو فوارې دي
شهیدان پکې ویده دی هدیرې دي خرې پرې
دلمړ وړانګې نه ښکاریږي توری وریځی راخوری دي
شین آسمان په ګردو پټ دی کنارې دی خرې پرې
څه دغم په نیلي سپور یم د بلتون په دښتو سریم
په ګریوان می ترمی اوښکې میلمنې دی خرې پرې
عرفانی نه غزل پاتې حیران ناست ده لاس ترزنې
دقلم څوک یې ماته کتابچې دی خرې پرې

## ته دمنلو نه يې

مشفق حریتمل

هسې لګیا یې چې ولس ته مې فایده کړې ده
تا فایده ونکړه تالویه خساره کړې ده

ته یې له خدایه یاغي تا بل ته ځولۍ نیولې
تا خدای ته شا کړه او بنده ته دې سجده کړې ده

دلته د بل دفکر خلکو همیش سر خوړلی
په غلامانو مونږ دسم مرګ فیصله کړی ده

د دربار شیخه ته محکوم یې دمنلو نه یې
تا ته لا چا دفتواګانو اجازه کړې ده

څوک چې زما دمفکورې او اسلامیت خلاف دي
هغوی ته خامخا خبره ما ترخه کړې ده

که زړه یې چوي خدای دې همدغه شیبه وچاودوي
کړې به واوري چې خبره چا کړه کړې ده

نن مې کینه درسره نوره هم څه زیاته شوله
نن مازیګر مې بیا دګران ورور جنازه کړی ده

شهیده زار دې شم خفه نشې ګټم به دې زه
ما ستا په لاره د درتللو اراده کړې ده

شعر ته مې مه وایه شعار دا مې دې درد دوطن
ما همیشه دشعر په مټ مبارزه کړی ده

له کنایو او اشاره څخه مې ډډه کړې
په زغرده ما دحق نعره همیش پخه کړی ده

سرې کوټلی لاس ترغاړه پښه یې بیخ کې پرې شي
چا چې مشفقه زما په ګران وطن حمله کړې ده

# پوځي ګوزارونو ډیپلوماتیکه بریا!

خبیر احمدم

دافغانستان اسلامي امارت که په پوځي ډګرکې دمقتدررب جل جلاله په نصرت اودملت په مرسته امریکا اوناټوزنګون کیش اوراپریستله اوخبره له افغانستان څخه دیرغلګروقواووتیښتې اوپښوسپکولوتربریده ورسیده ، په سیاسي ډګرکې هم لله الحمددااسلامي امارت تحرک اومقام دپام وړ اوورځ تربلې دحلول اوسرعت په حال کې ده .

که یواځې دتیرې یوې اونۍ پوځي پیښواوجهادي ګوزارونه ته وګوروداحقیقت په ګوته کوي چې داسلامي امارت پوځي اوجهادي تکتیکونه اوکارنده ګوزارونه هغه هم داشغالګرواوګوډاګیانوپه حساسوځایونوڅومره هیبتناکه اودښمن لړزونکي دي

په هلمندولایت دلسګونوګرجستانیوپوځیانومرګ ژوبله ، دکابل په بین المللي هوايي ډګربریالی اودښمن ځپونکي بریداوددې ترڅنګ دکابل رژیم دمفسدواودارماروقضاتوهدف ګرځول اودپکتیکاولایت دخیرکوټ په ولسوالۍ کې داردودیوه متعهدسرتیري له لوري دګڼو امریکایي فوځیانووژنه هغه مهمې پیښې وې چې له شک پرته یې نړیوال اوداخلي غلیمان سخت وټکول اوداحقیقت ورته یوځل بیاروښانه شوچې ددوی د هرډول امنیتي تدابیرو اوپوځي لاپوشاپوباوجودڅنګه داسلام اوهیوادااتلوسپاهیانوو کولای شول چې ټول شیطاني اودجالي حصارونه مات اوځان خپل هدف اوپلان شوي نقطې ته ورسوي .

مات اورسوادښمن که څه هم دخپلې تبلیغاتي نغاري په وسیله زیاروویست چې دګوزارونوترشادکوم ګاونډي هیوادلاس دخیل وشمیري ، خودلمرتلویزون په یوه تاوده بحث اوګردي میزکې رابلل شووسیاسي کارپوهانو په صراحت په دغوپیښوکې دکوم هیوادلاس لرل ردکړل اووی ویل چې امنیتي چاراوکي ددې پرځای چې ګاونډیان ملوث کړي په ښکاره دې اعتراف وکړي چې دوی دطالبانوپه وړاندې کمزوري اوعاجزدي ، دکارپوهانوپه خبره دایولوی امتیازدی چې دهرې پیښې شاته یې رژیم دګاونډیانولاس دخیل بولي اوپه لوی لاس هغوی ته غروروکوي ..

مونږ په دې خبره باورلروچې دکابل رژیم دامنیتي کړیواوقواوو له هرډول تجهیز اوچمتوالي سره سره چې داسلامي امارت اتلان په دې توانیږي د رژیم اودهغودبادارانو حساساومهمو مراکزوته ځان ورسوي اودڅوساعتونولپاره درژیم اوبهرنیانوټول جنګي ماشین مصروف اوهک پک وګرځوي فکرکووچې دادلوی اوتوانالله جل جلاله له ښکاره نصرت اودخالدبن ولیدسرشارې توري له برکت ماسیوا بل هیڅ عامل اوقوت ترشاشتون نلري . همدغه اثرووچې دګرجستان هیوادپه هلمندولایت کې څوپوځي اډې خالي کړي اوعسکرېې دنوموي ولایت په یوې اډې کې سره راټول شوي ، ددغه هیواددفاع وزیراندیښنه څرګنده کړې چې کیدای شي دنوروبریدونوهدف هم وګرځي .

داسلامي امارت دپورته پوځي بریاووترڅنګ یولړ سیاسي پرمختیاوې هم دهیرولو ندي ، له هغه ورسته چې اسلامي امارت دنیک نیتی اودسیاسي تفاهم دغزولو په هیله دترکیې هیوادڅوتنه هغه نیول شوي اتباع چې تیره میاشت دلوګرولایت ازرې ولسوالۍ کې د چورلکې په شمول دیوشمیرهیوادونونیږدې یودرځن اتباع نیول شوي ووازاداوترکي لوري ته وسپارل ، وړمه ورځ ددغواسیرانوله جملې څخه دقرغزستان هیوادیوتن وګړی هم دښه نیت په موخه خوشي اوقرغزي لوری ته وسپارل شو.

دکتونکوپه انددااسلامي امارت له لوري دترکیې اوقرغزي اتباعوپه مسالمت امیزډول خوشي کول اوهغوی ته سپارل جوتوي چې په سیاسي اودیپلوماتیک میدان کې هم اسلامي امارت اوس دیوه مطرح اوځواکمن جهت په توګه تبارزکړی اوپه دې وسیله هڅه کوي چې دسیمې اوګاونډله هیوادونوسره اړیکي قایمي اودتفاهم لارپرانیزي ، چې له شک پرته اسلامي امارت لپاره دایوه مهمه لاسته راوړنه اودامریکااوکابل رژیم لپاره په پوځي اوسیاسي دواړو میدانونوکې څرګندګوزاراوبرالا شکست بلل کیدای شي .

# داسلامي امارت دمالي چارو کميسيون

# له مشر سره ځانګړې مرکه

په افغانستان کې دغربي کفري يرغل په وړاندې روان جهاد که له يوې خوا دبشري ځواک دبوختيا او تلفاتو له اړخه يوه ستره جګړه ده له بله اړخه له اقتصادي نظره هم دا جګړه دنړۍ دسترو او کم ساريو جګړو له کتـه ګورۍ څخه شميرل کيږي.

په افغانستان دامريکا په مشرۍ لويديځوالو داسې مهال يرغل وکړ ، چې غربي ښکيلاکګر هيوادونه دهرکله په پرتله داقتصادي عروج په اوج کې وو ، په تيره امريکا چې دبل کلنټن په دوره کې يې اقتصاد بې سابقې وده کړې وه ، او جارج ډبليو بوش په همدې اقتصادي ځواک مغرور شو او په اسلامي نړۍ يې بريد پيل کړ.

معلومه خبره دچې دداسې جنګ په مقابل کې چې بې ساري اقتصاد يې ترشا ولاړ وي ، مقاومت هم خورا ډير مصارف او مالي قرباني غواړي ، دافغانستان اسلامي امارت دالله تعالی په مرسته او کومک په تيرويوولسو کلونو کې دنړۍ دخورا سترو اقتصادي زبرځواکونو په مقابل کې په جهاد بوخت دی ، په دې لاره کې که له يوې خوا اسلامي امت بې ساري ځاني قربانۍ ورکړې دي ، له بلې خوا يې مالي قربانۍ او جهاد هم خورا تاريخي او کارنامه سازبلل کيدای شي، دادافغان مسلمان ولس او کارنامه ساز بلل کيدای شي ، د دافغان مسلمان اولس او درست اسلامي امت بې ساري مالي قربانۍ وې ، چې دنړۍ دلويو کفري اقتصادونو په مقابل کې پيل شوی جهاد يې دبريا تر منزله ورساوو.

ددې لپاره چې داسلامي امارت په مالي سيستم او اقتصادي برنامو او ضرورتونو ښه علم ولرو ، په دې ګڼه کې مو داسلامي امارت داقتصادي چارو دکميسيون له رئيس ښاغلي ملا ابواحمد سره مرکه کړې چې ستاسو پام ورته غواړو.

---

**پوښتنه :**

محترمه له هرڅه وړاندې درته ښه راغلاست وايو ، که لومړی داسلامي امارت داقتصادي چارو دکميسيون په اړه معلومات راکړئ ، او په تشکيلاتو يې رڼا واچوئ ؟

**ځواب :**

الحمدلله رب العلمين ، والصلوة والسلام علی سيدالمرسلين محمد وعلی آله واصحابه اجمعين وبعد :

له هرځه وړاندې له تاسو هم مننه کوم ، ستاسو دپوښتنې په ځواب کې باید ووایم چې داقتصادي چارو کمیسیون داسلامي امارت په رسمي تشکیلاتو کې دمالي او اقتصادي امورو په برخه کې مسؤل او وظیفه دار کمیسیون دی ، چې دامارت اړوند دټولو مالي چارو نظم او اداره یې په غاړه ده.

دا کمیسیون په مرکزي اداره سربیره دافغانستان په ټولو ولایاتو کې خپل نمایندګان او تشکیلات لري ، دغه راز دمرستو دجلبولو لپاره دافغانستان په ټولو ولایاتو ، په ګاونډیو هیوادونو ، عربي نړۍ او داسلامي نړۍ په ډیری هیوادونو کې نمایندګان او تشکیلات لري ، چې دهمدې نمایندګانو له لارې دعام مسلمان امت هغه مرستې چې له مجاهدینو سره یې کوي او په مالي جهاد کې برخه اخلي ، داسلامي امارت تراقتصادي کمیسیون پورې رسیږي ، چې اقتصادي کمیسیون بیا دیوه شفاف او منظم پروګرام له مخې دغه مرستې په ټولو جهادي ضرورتونو باندې مصرفوي.

## پوښتنه :

دمرستو دراټولولو په اړه که معلومات راکړئ ، مطلب داچې عام خلک په هیواد یا دنړۍ په بله برخه کې څرنګه کولای شي له اسلامي امارت سره مرسته وکړي ؟

## ځواب :

لکه وړاندې مې چې وویل چې موږ په افغانستان ، ګاونډیو هیوادونو ، دخلیج هیوادونو او دنړۍ په نورو یو شمیر هیوادونو کې خپل نمایندګان لرو ، که هرڅوک هرځای وغواړي ، کولای شي له اسلامي امارت سره مرسته وکړي په دې برخه کې د اعتماد لپاره دوی کولای شي زموږ په مرکزي ایمیل ادرس ( Financecm.iea@gmail.com ) باندې رابطه وکړی ، خپل اعتماد حاصل کړي ، او خپل مرسته زموږ نمایندګانو ته وسپاري ، دغه راز دافغانستان دننه زموږ دوه تیلفون شمیرې ۰۰۹۳۷۷۲۷۸۴۳۷۲----- ۰۰۹۳۷۹۸۰۹۸۸۱۳ هم فعالي دي چې کولای شي له دې لارې هم رابطه وکړي او مرسته وکړي.

یوه خبره باید واضحه کړم ، هغه داچې ددښمن لخوا په لوړه سطحه کله داسې تبلیغات کیږي ، چې دمجاهدینو دپیسو په لیږد رالیږد یې مراقبت سخت کړی دی ، او اوس مجاهدین نه شي کولای دنړۍ له مختلفو سیمو نه مرستې راټولې کړي یا پیسې انتقال کړي ، باید ووایم چې دا خبرې یوازې تبلیغات دي ، مجاهدینو دمرستو راجلبولو او دپیسو او دانتقال لپاره خورا محفوظې لارې کاروي ، چې له هغه لارې نه مرسته کوونکو ته خطر متوجه وي او نه هم هغه چاته چې مرسته کوي ، نو باید په زغرده ووایم ددښمن مراقبت زموږ په فعالیت هیڅ اغیز نه دی کړی او که دنړۍ په هره برخه کې څوک وغواړي ، خپلې مرستې اسلامي امارت ترمجاهدینو ورسوي له موږ سره درابطې په صورت کې یې په ډیره محفوظه توګه رسولی شي.

## پوښتنه :

تاسو داقتصادي کمیسیون د تشکیلاتو او دمرستو دجلبولو خبره وکړه ، که داقتصادي کمیسیون په مصرفي امورو او مراجعو هم رڼا واچوئ ، چې اقتصادي کمیسیون خپلې پانګې په کومو برخو کې څرنګه مصرفوي ؟

## ځواب :

اقتصادي کمیسیون چې داسلامي امارت دټولو مالي چارو مسؤله اداره ده ، دکار او دپیسو دمصرف ساحه یې خورا پراخه ده ، دبیلګې په توګه زموږ د کار عمده برخې دادي:

داسلامي امارت نظامي کمیسیون چې له دې لارې دافغانستان په لراوبر کې دجهاد په ټولو ضروریاتو باندې مالي مصارف کیږي.

داسلامي امارت ملکي کمیسیونونه - چې په دې کې فرهنګي کمیسیون ، معارف ، دعوت وارشاد اونورې

مختلفې اداري راځي ، چې دا ټولې برخې درانه مصارف لري.

دصحت کميسيون ، چې په دې برخه کې دروان جهاد په زخميانو باندې علاج کيږي ،او دپام وړ برخه پيسې ورباندې مصرف کيږي.

دغه راز د يتيمانو کفالت ، دجهاد دزخميانو تداوي ، دبنديانو سره مرسته او معالجه ، دمعيوبينو سره مرسته او کفالت او نورې هغه عمدې برخې دي چې داقتصادي کميسيون لخوا يې مالي اکمال کيږي.

## پوښتنه :

که داسلامي امارت داقتصادي مسؤل په حيث دا راته ووايا ست چې داسلامي امارت اقتصاد په څه شي ولاړ دی ، يعنې همدا اوس ستاسو مالي اکمال له کوم مدرک څخه کيږي ؟

## ځواب :

داسلامي امارت اقتصاد دافغان مسلمان اولس او په عموم کې دنړيوال اسلامي امت په مخلصانه مالي ملاتړ باندې ولاړ دی ، لله الحمد اسلامي امارت دخپلې اوږدې ، شفافې او ثابت قدمه مبارزې په برکت په درسته اسلامي نړۍ کې دعامو مؤمنو پرګنو په زړه کې ځانګړی ځای موندلی ، نه يوازې افغانستان او ګاونډي هيوادونه ، بلکې دعربي هيوادونو په شمول دزياترو اسلامي هيوادونو عام مسلمان وګړي ، چې له کلونو راهيسې دسوچه اسلامي واکمنۍ تږي دي ، داسلامي شريعت نفاذ ، د طاغوت په وړاندې برحق جهاد او اسلامي نظام يې يو ارمان دی ، له اسلامي امارت سره داسلامي عقيدت په بنسټ ځانګړې علاقه لري.

ددې لپاره چې دامسئله ښه واضحه شي غواړم يو څه نور هم په دې موضوع خبره وکړم.

تاسو به اوريدلي وي چې دښمن تبليغات کوي ، چې له اسلامي امارت سره ځانګړي حکومتونه او شبکې مالي کومک کوي ، او په همدې مالي کومک باندې مجاهدينو جهاد جاري ساتلی ، مګر که موږ وګورو دافغانستان روا ن جهاد دمالي مصرف له درکه بيساری درونډ مصرف لرونکی او اوږد جنګ دی ، تردې چې امريکايي اقتصاد يې له پاللو عاجز شو ، او دنړۍ نور له اقتصادي اړخه قوي حکومتونه يې کمزوري او مفلس کړل ، مګر لله الحمد دمجاهدينو په خوا کې دهيڅ افلاس او مالي کمزورۍ اثار نه ترسترګو کيږي ،ددې بنيادي وجه داده چې داسلامي امارت اقتصاد د کوم معلوم هيواد يا سيستم په مرستو ولاړ اقتصاد نه دی ، او نه دسيمې وروسته پاتې هيوادونو دومره مالي امکانات لري چې دومره لوی جنګ له اقتصادي اړخه وپالي ، بلکې داسلامي امارت اقتصاد ديونيم مليارد اسلامي امت دمخلصو مسلمانانو په هغو مرستو او اعانو ولاړ دی ، چې په ډير اخلاص متعهد مسلمانان وروڼه خپله دخولې ډوډۍ نيموي ، او نيمه برخه يې له مجاهدينو سره شريکوي.

په افغانستان سربيره دنړۍ په مختلفو اسلامي هيوادونو کې موږ دمالي جهاد او قربانۍ داسې مثالونه لرو چې سړي ته دصدر اسلام وقايع وريادوي ، همدا اوس په مختلفو اسلامي کې ګڼ شمير مسلمانان دخپلې سرمايې يوه برخه جهاد ته وقف کوي ، په ځانګړي توګه داسلامي امت ښځې په جهاد بالمال کې خورا مخکښ رول لري ، دلته به درته يو دوه مثالونه ذکرکړم ترڅو تاسو وفهموئ چې مسلمانان په څومره اخلاص په جهاد بالمال کې برخه اخلي.

يو مسلمان ورور چې نه غواړم نوم يې واخلم ، له مجاهدينو سره ناڅاپه د ډيرو پيسو مرسته وکړه ، کله چې ملګرو تردې ددومره پيسو دمرستې پوښتنه وکړه ، ده وويل چې دمجاهدينو دمالي ضرورتونو او احتياجاتو په اړه چاراته بيان وکړ ، خو له ماسره دومره پيسې نه وې چې

دغه راز موږ دجهاد دزړګونو شهیدانو په لسګونو زره یتیمان را پاته دي ، داقتصادي کمیسیون ملګري چې دهیواد له مختلفو ساحو ، کلیو او بانډو څخه یې دیتیمانو لستونه راټول کړي دي ، ددې ټولو یتیمانو کفالت او مرسته داسلامي امارت په غاړه ده ، دغه یتیمان چې پلارونه یې په کومه شخصي نزاع کې نه ، بلکې یوازې داسلام په ننګ شهیدان شوي دي ، یتیمان او کونډې یې بل هیڅ مدرک نه لري ، له دې پرته چې اسلامي امارت ورسره مرسته وکړي ، په دې سربیره زموږ لسګونه زره مجاهدین ددشمن په زندانونو کې بندیان دي ، له دې بندیانو سره موږ دبند په موده کې هم مرسته کوو ، چې راخلاص شي د شوي مصرف یوه معلومه فیصدي ورکوو او علاج هم ورباندې کوو ، ځکه اکثره بندیان دزندان دبدو شرایطو له امله په مختلفو ناروغیو مبتلا وي ، دغه رنګه دجهاد دلارې زخمیان او معیوبین چې موږ ورباندې معالجه کوو ، او کوم معیوبین چې په داسې ډول معیوب وي ، چې کار نه شي کولای هم موږ ورسره د امرار معاش لپاره مرسته کوو ، په دې سربیره له ډیرو هغو مهاجرو مجاهدینو سره چې کوم مدرک نلري موږ ورسره دامکاناتو په صورت کې فوق العاده مرسته کوو.

که تاسو فکر وکړئ ، دغه کسان چې موږ ورسره مرسته کوو ، هغه که مجاهدین دي یا زخمیان ، بندیان ، مهاجرین ، معیوبین ، یتیمان او کونډې ټول زموږ داسلامي ټولنې هغه محتاج ، مستضعف او مستحق قشر دی ، دوی یوازې داعلاء کلمة الله لپاره خپل هوسا ژوند قرباني کړی ، دسر ، مال ، اعضاء او قریبانو قرباني یې ورکړې دي ، نو زما په فکر دغه خلک په ټولو مسلمانانو حق لري چې باید مرسته ورسره وکړي ، او که مسلمانان ورونه له دوی سره مرسته وکړي الله تعالی به په جهاد کې دشرکت کامل کامل اجرونه ورکړي.

## پوښتنه :

په پای کې که داسلامي امارت داقتصادي چارو دکمیسیون دمشر په حیث مسلمانانو ته څه پیغام لرئ ، هیله کوو چې راسره شریک یې کړئ.

## ځواب :

تاسو له ماغوښتنه وکړه چې مسلمانانو ورونو ته خپل پیغام ورسوم ، باید ووایم چې زه کوم شخصي پیغام دوی ته نه لرم ، زه غواړم د یوداسې ادارې دمشر په صفت چې دلسګونو زرو مجاهدینو ، معیوبینو ، زخمیانو ، بندیانو ، مهاجرینو ، یتیمانو ، کونډو او محتاجو خلکو کفالت او مالي اکمال ور له غاړې دی ، غواړم خپل مسلمان امت ته یوازې دالله تعالی او دغه رسول صلی الله علیه وسلم پیغام ورپه زړه کړم ، چې الله تعالی دانفاق في سبیل الله په باره کې څه وایي او مسلمانان په داسې حالاتو کې په څه مأموروي.

الله تعالی په قرانکریم په بیا بیا د جهاد بالمال ذکر کړی دی ، او مسلمانان یې په دې مأمور کړي دي ، چې د ځان غوندې په خپل مال سره هم جهاد وکړي ، او حتی په اکثرو مواردو کې یې جهاد بالمال له جهاد بالنفس نه مقدم ذکر کړی دی ، لکه الله تعالی فرمایي (انْفِرُوا خِفَافاً وَثِقَالاً وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ) (التوبة:41 ) تاسو که سپک یاست یا درانه یاست دالله تعالی په لاره کې ووزئ او جهاد وکړئ په خپلو مالونو او ځانونو سره.

علماء کرام فرمایي چې دجهاد بالمال دتقدیم وجه په جهاد بالنفس باندې داده ، چې یو خو مال په اکثرو خلکو ډیر ګران وي ، نو ډیر ګران شی صدقه کول لوی اجر لري ، او بله داچې اکثره وخت مجاهدین مالي امکاناتو ته ډیر ضرورت لري او ډیر محتاج وي ، دهمدې ډیر احتیاج له امله الله تعالی خلک لومړی په جهاد بالمال مأمور کړي دي ، لکه وړاندې چې وویل شول نن سبا داسلامي امارت مجاهدین له مالي اړخه له ډیرو مشکلاتو ، موانعو او فشارونو سره مخامخ دي ، له همدې امله جهاد بالمال ته

ډېر ضرورت شته ، او په هر وس لرونکي مسلمان دا لازمه ده چې يوه برخه مال داعلاء کلمة الله په لاره کې مصرف کړي.

د جهاد بالمال او انفاق في سبيل الله دفضائلو په برخه کې دومره زيات ايتونه او احاديث راغلي دي ، چې د ټولو ذکر شايد دلته ممکن نه وي ، الله تعالى فرمايي:

يا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ *تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ. الصف-١٠-١١ آيتونه

اې هغو کسانو چې ايمان مو راوړئ آيا تاسو ته داسې تجارت درو ښيم چې تاسو له دردناک عذاب څخه خلاص کړي ، په الله تعالى او دهغه په رسول صلى الله عليه وسلم ايمان راوړئ او دالله تعالى په لاره کې په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد وکړئ ، دا ستاسو لپاره خير دى که پوهيږئ !

دغه راز دانفاق في سبيل الله په باره کې الله تعالى فرمايي چې الله تعالى به د صدقه شوي مال په عوض صدقه کوونکي ته څو برابره اجر ورکړي الله تعالى فرمايي (مَثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِائَةُ حَبَّةٍ وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ (261)) البقرة.( هغه څوک چې دالله تعالى په لاره کې مال مصرفوي مثال يې داسې دى لکه يوه دانه چې اوه وږي راشنه کړي ، او په هر وږي کې سل دانې وي ، دالله تعالى چې چاته خوښه شي اجر يې زياتوي ، الله تعالى پراخوونکى داجر او عليم دى.

دغه راز رسول الله صلى الله عليه وسلم مسلمانان دجهاد بالنفس او جهاد باللسان غوندې په جهاد بالمال هم مأمور کړي دي ، او په يوه حديث شريف کې فرمايي ، چا چې يو مجاهد مجهز کړ ، يعني دجهاد اسباب يې ورته تيار کړل ، په حقيقت کې ده په خپله غزا وکړه.

نو مسلمانانو وروڼو ته بايد ووايم ، چې په افغانستان دغربي کفري يرغلګرو حمله کوم عادي ددوو ملکونو جنګ نه دى ، غربيان خپله دا د تمدنونو ټکر بولي ، دوى غواړي ، ددې اسلامي هيواد په لاندې کولو سره د درستې اسلامي نړۍ په زړه کې سنګر ونيسي ، له همدې امله څرنګه چې دا دعقيدې جنګ دى ، په هرمسلمان باندې دمجاهدينو ملاتړ لازم دى ، لکه څنګه چې کفار دنړۍ له ګوټ ګوټ نه له مختلفو ممالکو څخه خپلې ماليې په دې جنګ کې لګوي ، دجنګ دمصارفو پوره کولو لپاره په رسمي کچه بسپنې کوى ، پيسې راټولوي او بيا يې په خپلو عسکرو او اجيرو غلامانو مصرفوي ، مسلمانان هم بايد داسې احساس ولري ، بايد دخپل مال يوه برخه ددين په لاره کې مصرف کړي ، ترڅو په دې توګه په جهاد کې دشرکت شرف وګټي ، هغه جهاد چې که څوک په کې په يوه شکل هم شرکت ونه کړي ، نو منافق بلل کيږي ، ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي ، من مات ولم يغزو ولم يتحدث به نفسه مات على شعبة من نفاق.

څوک چې په داسې حال کې مړ شي چې نه جهاد وکړي او نه يې احساس ولري ، نو داسړى په يو ډول دنفاق مړشوى دى.

نو مسلمانان وروڼه بايد په اسلامي احساس راوړاندې شي ، او دخپلو مجاهدينو ، اسيرانو ، يتيمانو او نورو مستضعفينو مرسته وکړي.

والسلام

# دډيموکراسۍ تمثيل

سيد سعيد

په افغانستان کي تر بل هروخت ډير ډيموکراټان په غوره کي دي او په دې خوشحال دي چي نسبتا پخوانيو وختونو ته ډيموکراسي اوس ډيره پياده شوې ده. د وی ډيموکراسي داسي تعريفوي چي عبارت ده:« پرخلګو دخلګو په خوښه دخلګوله حکومت څخه» ،خو چي هم داپديده په عملي ياتمثيلي ډګرکي ګوروبيخي برعکس ده. مثلادلته د ډيموکراسۍ دراتګ اوعمل څوعيني بېلګې درسره شريکوو :

ډيموکراسي ده ، چي دبې ۵۲ ،اوايف ۱۲ ډوله بم غورځونکوالوتکواوکروزتوغنديو په مټ يې دافغانستان هوايي قلمرومات کړ، په لسهاووزره ولسي وګړي يې شهيدان اودتوروزندانونوبنديوان کړل ،کلي اوباغونه يې په بمونواوبلډوزرونوويران کړل ،ميوه لرونکي وني اوځنګلونه يې اره اولولپه کړل.

هو !ډيموکراسي ده ،چي هيواد موپه نړيواله سطحه اداري فسادکي لومړی مقام وګاټه .

ډيموکراسي ده ،چي داخلاقي فسادپه اوج کي ځلورکلن ماشومان هم دجنسي تيري ښکارشول.

ډيموکراسي ده ،چي لوړپوړي اوعمرخوړلي قاضيان اوحقوقپوهان له شواهدوسره دفساد ، اختطاف ،تهديداوجنسي ځورونوپه تورونيول شول ،خودډيمواکراسۍ له برکته بيرته ډيرژرخوشي شول.

ډيموکراسي ده ،چي لاريون کونکي په پرله پسې توګه دوهلو ،بندی کولواوژلوسره مخ کيږي .

ډيموکراسي ده ،چي دژورناليستانو وهل ،بندي کول ،وژل اوآن پيروپلورپکي دورځي دنرخ خبره ده.

ډيموکراسي ده ،چي صادره ونکي پوځيان يې په نيمه شپه کي دخلګوپه کورنونوزي ،دعاموخلګودوهلو ،کړولو ،بې عزته کولواووژلواوبيايې دمحاکمې څخه دبرات حق لري .

ډيموکراسي ده ،چي ځورول شوي ،وهل شوي ،بنديان شوي ،ژوبل شوي اودشهيدانوورثان دقاتلانواوظالمانو پرضدخوله نشي چوله ولای ،کنه غوښتنه به يې په ستوني کي وچيږي اود مرګ سره به مخ کيږي .

ډيموکراسي ده ،چي واردونکي عسکريې ولسي خلګ دورسره شوي ظلم په غبرګون کي دلاريون پرمهال په ښکنځلو ،وهلواووژلوبدرګه کوي ،بيايې دمخالفينوپه نوم نوموي اودوژلوجوازيې ترلاسه کوي.

ډيموکراسي ده ،چي دين پرېښودل ،په مقدساتواوارزښتونوملنډي وهل اوسلفوپسي بدرديل دعقيدې اوبيان ازادي ګڼل کيږي.

ډيموکراسي ده ،چي دپيسوترلاسه کول په هره ښه اوهره لاره چي وي ،ولوکه دنورودجنسي خواهشاتوپه پوره کولوسره هم وي دازادبازارښه بزنس بلل کيږي.

ډيموکراسي ده ،چي په ژبه اوقلم ،نظم اونثرکي جنسي تمايلاتوته هواورکول او اخلاقي فسادته هڅول ازادخيالي اوترقي بلل کيږی.

لنډه داچي ډيموکراسي ده ،چي اسماني قوانينوته پکي ځای نشته ،روااوناروا ،حق اوباطل په يوه تله پکي تلل کيږي اوترجيح ورکول يې يوازي اويوازي دافرادوترشخصي اونفسي خواهشاتو ،تمايلاتواواحساساتو پوري حصرده .

# ترانه اوشعر !!

ژباړه اوزیاتونې : لطیف عزم

دلغت پوهان ترانه دځوان ،تروتازه ، ښکلي صورت اودجمال او کمال دصاحب په معناسره بولي ، ویل کیږي چې ترانه په عموم کې یوشعري قالب دی چې له شفاهي ادب څخه سرچینه اخلي

ترانه په اصل کې له شعرسره اړیکه اوربښه لري اوله ځان سره یولړ شعري قوانین مراعتوي ، خوپه خپله ترانه بیاځانته تعریف اوځانګړ تیاوي هم لري ، له همدې امله ترډیره ځایه له شعرسره شباهت لري ، ولې دشعر اوترانې عمده تفاوت داده چې ترانه له اهنګ اوترنم سره یوکورنی ربط اوپیوندلري سره لدې چې ځینې شعرونه هم له ترنم اوموزون غږ سره زمزمه کیږي ، خودانادراوکم پیښیږي .

ځیني بیاوایي چې شعر په کلاسیک اوازادوقالبونوکې چې واچول شي صرف یوادبي احساس ته ویل کیږي چې دخیال په وزروالوت کوي اودکلموپه وسیله لوستونکوته وړاندې کیږي ، ولې ترانه هغه سروداوزمزمې ته ویل کیږي چې له ترنم ، خواږه سوز اوزړه راښکونکي اهنګ سره دخلکو غوږونوته رسیږي.

دترانې مهمه ځانګړ تیاداده چې دهغې مخاطب په عمومي ډول عام خلک وي اوترانه ویونکي بایدداخبره ارومروپه نظر کې ونیسي چې دترانې اوریدونکي صرف هغه طبقه نده چې له شعراوادبیاتوسره مینه اوعلاقه لري ، بلکې دترانې مینه وال هغه څوک دي چې دمعنی اومفهوم په ځای زیات اهمیت غږ ،اهنګ اوترنم ته ورکوي.

بله نکته داده چې په ترانه کې ترډیره بریده بایدهغه کلیمي اوتوري وکارول شوي چې هغه ولسي رنګ ولري اودخلکوپه منځ کې داستعمال وړوي ، یعني دکلاسیکوکلموپه ځای بایدله فولکوریکې (روانې ) ژبې اواصطلاحاتوڅخه استفاده وشي

ترانه په عامیانه طرحه اواحساس مبني وي ،لکه فراق ، محبت ، هیواد، له ظلم اوستم سره مبارزه ،له الله جل جلاله نه ویره ، ولسي افتخارات اودحماسوننګه اوداسې نور........

اوپوهان داهم ورزیاتوي چې هره وړوکې قطعه چې په ترنم اوخوږ لحن برابره اوویل شي ترانه بلل کیږي

**دترانې جوړښت :**

د مناسب وزن ترخوا ، داسې طرحه اوموضوع ولري،چې لیدلوري اوسرچینه یې په معنویت ، مینه ، ټولنه ( زمزمه اوبیان ) باندې وڅرخي

دترانه ویونکي لپاره څوخبرې

هرکله چې شاعراویاترانه ویونکي ته دشعر اوترانې حس پیداکیږي ضروري ده چې هغه دقلم په وسیله دکاغذپه مخ راټول اووي لیکي (ځکه دغه شیبې ډیرې قیمتي لنډې اوکوتاه وي )له هغه ورسته دې خپلې کړښې په خاص قالب اوسبک کې راونغاړي اولاندې اصول دې پکې پیاده کړي

۱ – دقلم اولیکنې صفایي اوښکلا ځکه دغه کارحس اوشعرته درناوي ښني اودتشویق وړ ګرځي .

۲ – کوښښ دې وشي چې له هربندورسته لنډکی ساه موجوده وي اوفواصل د( ، ) کامې اویا( / )ولاړې کرښې په واسطه ولیکل شي په شکل سره لیکل شوي وي

۳ –دعنوان انتخاب باید دترانې دمفهوم په اساس وي نه دیوې خاصې مصرعی له امله .

۴ – قافیه بایدلږ ترلږه دوه حرفه وي

۵ – هغه بندچې دپای توری یې داوږدیدااوکش کولو غوښتنه کوي کسره یازیربایدورکړل شي

۶ – داهم بایدله یاده ونه غورځول شي چې ترڅوترانه دشعرپه لوراوسبک مزل وکړي بده نه بریښي ، بلکې هنري رنګ اوډول ورکوي اوپوهان وایي چې هرهغه ترانه چې صرف په محاوري بناوي وي اوادبي اسلوب پکې نه وي مراعات شوي قوت اواغیزمنتیایي له منځه وړي .

مرجع : ألحان طيبة

، اصول ترانه سرايى

لومړۍ برخه

# دادب سنګر او سنګریان



## له ملافقیر محمد درویش سره مرکه

د څرک درنو لوستوالو !

داځل دادب سنګر او سنګریانو په برخه کې کوم شاعر نه درپېژنو ، بلکې یوداسې څوک درپیژنو چې په خپل روڼپال ترنم سره دشاعرانو مړو او بې غړه هنرپارو ته روح او بقاء ور کوي ، دشاعرانو له زړه راپورته شوی درد او برداس دترنم په رنګ رنګوي ، او بیر ته یې دپسرلني باران غوندې په تږیو او سوځېدلو زړونو باندې وروي .

هو کې ، الحاج ملافقیر محمد درویش دریادوو ، چې په په خپل داودي ترنم یې تراوسه ډېر زړونه ګټلي دي ،هغه ترنم چې کله دخوست له یوې اولسي جلسې راپورته شوی ، کله یې دشوروي ښکارو په شور کې دپکتیا او خوست په ځنګلزارو درو کې ازانګې کړې ، کله یې دهندوکش په لمنو کې دمینه والو زړونه لړزولي او کله یې هم د راډیو او انټرنیټ په کربښو خپل تږي شائقین سیرابه کړي دي .

څو موده وړاندې دڅرک مجلې دوو همکارانو زبیر مسافر او عبدالرؤف حکمت له ملافقیر محمد درویش سره اوږد بنډار درلود ، دهمدې بنډار په استناد درته دملافقیر محمد درویش لومړنۍ مفصله مرکه وړاندې کوو هیله ده خوښه مو شي ، دمر کې نورې برخې به په راتلوونکو ګڼو کې ولولئ .

ع ، حکمت

درویش صاحب که په پیل کې ځان راوپیژنئ ، دافغانستان په کومه سیمه کې زیږېدلي یاست ، دغه راز دخپل ماشومتوب په اړه که معلومات ور سره علاوه کړئ مهرباني به مو وي ؟

ملا فقیر محمد درویش

بسم الله الرحمن الرحیم ، زما نوم فقیرمحمد دی دملا کاظم شاه زوی چې په ۱۳۴۴ هـ ش کال کې دخوست ولایت داسمعیل خېلو ولسوالۍ دحیدرخېلو په سیمه کې زیږیدلی یم ، زموږ کورنۍ ډېر پخوا، دوردګو ولایت دشنیز کچکالې دسیدانو له سیمې څخه دخوست ولایت اسمعیل خېلو ته راغلي ، دلته یې ځمکه اخیستې ، او خوست مو اوس پلرنی ټاټوبی او دپیدایښت ، خاپوړو او ماشومتوب وطن دی .

دماشومتوب او ابتدایي ژوند په اړه به درته ووایم ، چې لومړنۍ الفباء او قرانکریم مې په خپل کور کې له خپلو والدینو نه ولوست ، وروسته درز کړو لپاره دخپلو ماماخېلو کره لاړم ، څنګه چې دمور لخوا زما نیکه ( دوتلي نعت خوان شهید احمدغني مسکین یار پلار ) یو وتلی عالم وو، ددوی په کور کې مې له خپل نیکه سبقونه شروع کړل ، هغه به په کور کې هم سبق راته وایه ، او وروسته به مو په ګډه

دغر لپاره مال غره ته بوت ، هلته به يې هم سبق راته وايه ، چې په دې وخت کې مې ابتدايي ديني کتابونه ولوستل او ورسره مې دخط ليکل او لوستل هم زده کړل .

زبير مسافر

په ماشومتوب کې مو له ترانه ويلو سره شوق وو؟

ملافقير محمد درويش

بلې کله چې زما دماشومتوب وخت وو ، نو دا غالبا دظاهر شاه وروستي او دداود اولني کلونه وو ، په دې وخت کې زموږ په سيمه کې په مکتبونو کې د کمونيزم تبليغات ډير ګرم روان وو ، او دمکتب ځينو هلکانو به دکور کالي ډوډۍ شعارونه او شعرونه بدرګه کول ، په دې وخت کې په خوست کې دسيمې علماء کرامو هم ددوی په خلاف مبارزه کوله ، غونډې او جلسې به يې جوړولې او خلک يې دکمونيستانو له دهري افکارو خبرول ، زما پلار او ماما احمدغني مسکينيار هم دکمونيستانو په ضد ددې غونډو او جلسو مهم فعالان وو ، زما ماما به په دې غونډو کې خپل ليکلي اشعار او ترانې په ډير خواږه ترنم سره ويلې ، ماچې دهغه کتابچه کتلې نو له زياتره شعرونو سره ۱۳۵۳ کال ليکل شوی ، په همدې کلونو کې به چې ما دشهيد احمدغني مسکينيار ترانې اوريدې ، ډيرې ښې رابانددې لګيدې ، او کله به مې چې ماما زموږ کورته راغی ، نو ما يا زما مور به هم ترې غوښتنه کوله ، چې يوه ترانه راته زمزمه کړي ، دده غږ په ما ډير خوږ لګيده او له همدې وخته مې له ترانو سره مينه پيدا شوه ، دداود خان په وخت کې احمد غني مسکينيار عربو ته لاړ او داشعارو کتابچه يې ددوی په کور کې ماته په لاس راغله ، دده ډير اشعار ليکلي وو خو يو شعر چې دموسی عليه السلام او يوه قصاب واقعه يې په کې منظومه کړې وه ، ما يې طرز له ده څخه زده کړی وو او ډير خوند يې راکاوه ، همدا شعر مې په يادو زده کړ ، څه وخت وروسته دثور کودتا وشوه ، دثور له انقلاب وروسته چې زه لادعمر په لحاظ کشر وم ، له خپل کور څخه لاړم او دخوست ښار جنوب ختيز ته نږدې دشمل په مدرسه کې مې داخله واخيسته ، ددې مدرسې مهتمم ډاکټر شير محمد نوميده چې ډير متقي پرهيزګاره اومشفق انسان وو ، په همدې مدرسه کې اوسيدم چې دهمدې کال په اوړي کې دمدرسې لپاره دچندې ټولولو پروګرام شروع شو ، په دې لړ کې دخوست په متون سيمه کې دمدرسې لپاره دچندې ټولولو په وخت دهمدې سيمې په يوه کلي کې چې نوم اونقشه اوس زما په ياد نه ده زه په لومړي ځل دميکرافون مخته حاضر شوم او دخلکو په وړاندې مې ترانه وويله ، چې هماغه دموسی عليه السلام داستان وو ، تردې وروسته مې څه موده دخوست په مندوزيو کې درس ووايه ، او بيا څنګه چې زموږ کورنۍ ډيره ترمراقبت لاندې وه او هره شيبه دکمونيستانو دحملې ويره وه ، نو په ۱۳۵۸ کال دجدي په مياشت کې دببرک کارمل دواک ته رسيدو نه څوورځې وروسته مو خپل کلی پريښود ، لومړی دخوست دګربزو سيمې ته لاړو همدلته دغلام خان نږدې دبنګيدار په سيمه کې موڅه وخت تېر کړ اووروسته مو بيا هنګو ته نږدې دعظيمي کلي اوخيساري سيمې ته هجرت وکړ او همدلته مودخساري په کيمپ کې دروسي ښکيلاک له وجې دهجرت ژوند غوره کړ چې تقريبادنجيب دحکومت ترسقوطه پورې دلته پاتې شوو او کله چې په افغانستان کې کمونيستي حکومت نسکور اومجاهدين په قدرت ورسيدل نو موږ هم دهجرت له دياره خپل ابايي وطن افغانستان خوست ولايت ته واپس ولاړواودروسي ښکيلاک له امله دهجرت دالړۍ ختمه شوه.

زبير مسافر

تاسو دخپلو ابتدائي زده کړو يادونه وکړه که دخپلې تعليمي سلسلې په اړه معلومات راکړئ ، چې څومره زده کړې مو کړې دي ؟

ملافقير محمد درويش

ترهجرت وړاندې مې يوازې اولني ابتدايي کتابونه لوستي وو ، کله چې مو هجرت وکړ ، لومړی مې په کوهاټ کې دجنګل خېلو دکلي په يوه مسجد کې باقي پاتې ابتدايي کتابونه مکمل او بيامې په کوهاټ کې دپراچګانو په مدرسه کې داخله وکړه چې فکر کوم دا ۱۹۸۰ ميلادي کال وو او نودلته مې يو کال سبق اوايه وروسته دهنګو سيمې ته راغلم او دلته په سراج الاسلام کاهي ، مفتاح العلوم هنګو او دسروزيو په مدرسو کې مې زده کړې وکړې بيا پيښور ته لاړم هلته مې په دار العلوم هاشميه باړه کې يو کال سبق اويلو خو تقريباډيرې زده کړې مې په سراج الاسلام کاهي کې ترسره کړې چې فکر کوم

فنون مې ټول دلته خلاص کړل، او وروسته مې ، په میرانشاه کې دستر جهادي شخصیت الحاج مولوي جلا ل الدین حقاني حفظه الله په مشهوره مدرسه الجامعه منبع العلوم کې شامل شوم او وړه دوره او لویه دوره مې همدلته ترسره کړې ، خو په ډیر تأسف چې ددستاربندۍ په مراسمو کې ګډون مې نصیب نه شو ، ځکه داهغه مهال وو ، چې دجهاد له بریالیتوب وروسته په کابل کې دتنظیمي مشرانو ترمنځ سخت جنګ روان وو ، زه چې دخپلو وروڼو مشر ورور وم نو دکورنۍ مسؤلیت را په غاړه وو او باید خپل کورته مې حلاله نفقه پیدا کړې وای ، په دې وخت کې چې مالویه دوره کوله ، دسعودي عربستان ویزه مې واخیسته ، او ددستاربندۍ مراسمو ته تقریبا ۱۵ ورځې پاته وې ، چې زه سعودي عربستان ته لاړم چې دا ۱۶/۲/۱۹۹۳ میلادي کال وو بیا څو کاله د روزي ګټلو لپاره همالته په مدینه منوره کې پاته شوم زمادسفر اخرنی کال وو چې دطالبانواسلامي تحریک راڅرګند شوخومتاسفنه چې زه له هیواده بهروم بیاپه

۴/دجون/۱۹۹۶م کې واپس وطن ته راغلم زه ډیر زیات خوشال وم ځکه چې په دې وخت کې دطالبانو اسلامي تحریک خوست ته هم رارسیدلی وو زه دځه وخت لپاره کور پاته شوم بیامې خپل اولنی اوتاریخي سفر کندهارته وکړ چې په دې سفر کې زماملګري مولوي صاحب نقیب الله دغزني دمقور اویوبل طالب وو چې نوم یې رانه هیر دی هلته په کندهار کې داطلاعات او کلتور مسؤلینو محترم امیرخان متقي ،عبدالحی مطمئن ، عبدالاحدجهانګیروال ، احمد الله وثیق اوسردار محمد شکیب اونورو ملګرو لکه وکیل احمدمتوکل صاحب وغیره سره زماملا قاتونه وشول خوزماتر ټولو لوی سعادت دا وو چې دجناب عالیقدر امیر المؤمنین ملامحمدعمر مجاهد حفظه الله سره زمااولنی ملاقات وشو اودهغه مبارک په لیدومشرف شوم داهغه وخت وو چې دکابل دفتحې غالبادوهمه ورځ وه په سباته مونږ بیاکابل ته راغلو اودسفر ملګري مواوسنی دکیوبااسیر محترم خیرالله خیرخواه صاحب (فک الله اسره ) اودده انډیوالان وو چې دا وخت نوموړی دکابل دوالي په توګه تعین شوی وو نوموږ دده سره په یوه خاص هلیکافټر کې راغلو چې مجاهدینوتازه په هیرات کې له تورن اسمعیل خان څخه نیولی وو په کابل کې ماته دملګرو له خوا دریاست جمهوري په اداره امور کې دمطبوعاتي دفتر وظیفه راوسپارل شوه .

ع ، حکمت

تاسو وویل چې لومړني نعتونه مو دماشومتوب په مهال په خوست کې ویل ، له هجرت وروسته مو دترانه ویلو لاره څنګه پسې تعقیب کړه ؟

ملا فقیر محمد درویش

له خوست نه چې کله مهاجر شوو ، نو دهنګو په سیمه کې داوسیدو په مهال مادرس وایه ، په دې وخت کې زما ماما شهیداحمدغني مسکینیار هم له عربو راغی ، او دجهاد په خاطر یې دهغه خت قیمتي سرمایه دمسقط اوابوظبي دوه ویزې پریښودې ، هغه له جهاد سره سره دمهاجرینو اومجاهدینو په جلسو او غونډو کې شرکت کاوه اودجهاد لپاره به یې تشویقي ترانې ویلې . پاتې دې نه وي چې دکمونستي ډلو په ضداشعار نوموړي له ۱۳۵۳ هـ ش کال راپه دې خوا ویل، نو یو ه ورځ یې ماته وویل چې خبر شوی یم چې ته هم ترانې وایې ، ته یوه ترانه راته زمزمه کړه ، ماچې کله ترانه ورته وویله نو زما غږ یې خوښ شو ، نو نور یې هم تشویق کړم ، په دې وختو کې موږ یو څو تنه ( زه )، اومرحوم شهیداحمد غني مسکین یار ، مرحوم محمدرسول کاکا ، مرحوم شهیدحضرت زمان ، اوحاجي حلیم الله په نامه اوځو تنه نور مجاهدین ) به دمهاجرینو په کمپونو او مهاجرو افغانانو باندې ګرځیدو او خلک به مو جهاد ته دعوت کول ددې دعوت په مهال به مونږ حماسي ترانې هم په لوډاسپیکرو کې ویلې چې په خلکو یې خوراژور اثر درلود ، نو په دې مهال دجهادي جلسو ، دشهیدانو دفاتحه خوانۍ یادمدارسو په جلسو کې له شهیداحمد غني مسکینیار سره یوځای ماهم ترانه خواني ته ادامه ورکړه ، یو وخت له دې امله چې ترانه خوانۍ له درس ویلو ایستلم ټینګ هوډ مې وکړ چې ترانه خواني پریږدم خو بیا دهمدې سیمې ډیرو مشهورو علماء کرامو او استادانو چې په سر کې یې دپکتیاولا یت ګردیز دتیرې کندو اوسیدونکی مشهورعالم مولوي صاحب عبدالواحد حفظه الله وو تشویق کړم او راته ویې ویل چې ستا لپاره اوس تر هرڅه لوی خدمت همدغه ترانه خواني ده چې بایدادامه

ور کړې ، په دې کلونو کې احمد غني مسکینیار په خوست کې دژوره غونډ په لوی جنګ کې په شهادت ورسید ، او مجاهدینو ملګرو یې ماته دیوه خلف په سترګه کتل ، نو په دې شکل مې ترانه ویلو ته ادامه ور کړه .

زبیر مسافر

تاسو دمجاهدینو دتشویق او تحریض په برخه کې دترانو د مؤثریت خبره وکړه ، که دهغه مهال کومه خاطره په یاد لرئ ، هیله ده راسره شریکه یې کړئ ؟

ملافقیر محمد درویش

په دې وخت کې زه خپله له داسې تجربې سره مخامخ شوم ، چې جهاد ته ددعوت او تحریض په برخه کې یې د حماسي ترانو په اغیز لرلو متیقن کړم ، ځکه یوې حماسي ترانې خپله په ما ډیر ژور اثر وکړ .

کیسه داسې وه چې په هغو شپو ورځو کې چې شورویانو په خوست کې دسترجهادي شخصیت حقاني صاحب حفظه الله دمجاهدینو دمحکم سنګر ( ژورې غونډ ) دنیولو لپاره خورا پراخ عملیات پیل کړي وو او په خوست کې سخت جنګ روان وو چې زما مرحوم پلار او ماما شهیداحمد غني مسکینیار هم ورغلي وو زه او ورور مې مرحوم ظاهر محمد چې ترخپلونورو وروڼو مشران وو ، خپل داوسیدو په کمپ کې دیوې کوټې په جوړولو لګیا وو ، سره له دې چې کار مو کاوو نوپه راډیو کې به مو دهغه مهال دمجاهدینو راډیو ( صدای افغانستان ) هم نیولې وه ، په دې وخت کې راډیو پله پسې دخوست دجګړې په اړه مطالب نشرول ، خو وروسته یې داحمدشاه کندهاري دا ترانه وراوچوله چې ویل یې ( ته ارام کوه خوبونه دبخملو په بستر کې ، ماپه سرو وینو کې پرېږده چې سلګۍ وهم سنګر کې ) ددې ترانې په اوریدو زما ورور خپله په لاس کې ډبره چې دیوال یې ترې جوړاوو وغورځوله ، او ویې ویل چې نور هرڅومره سخته شي هم والله که پاته شم ، څرنګه چې زه الحمدلله له مخکې نه متاثر وم اوهمدانیت او اراده مې وه نودده له خبرې سره یوځای ما هم دجهادلپاره ملا وتړله او دواړه میرانشاه ته روان شوو ، داهغه جګړه وه چې زموږ ماما احمدغني مسکینیار هم په کې شهید شو ، په هرحال په دې وخت کې یوې جهادي ترانې په موږ دومره اغیز وکړ چې کور مو همداسې پریښود او دجهاد قصد مو وکړ .

ع ، حکمت

سره له دې چې پخوا هم دوعظ او نصیحت په شکل ترانه خواني دود وه ، خو عمومي باور دادی چې پښتوجهادي ترانه خواني شهید مسکینیار او تاسو راپېنځوله او دیوې نوې جهادي تبلیغاتي پدیدې په توګه مو راژوندۍ کړه ، که دا راته وواياست ، چې دتیرجهاد په پیل او وروستیو کلونو کې دجهادي ترانه لیکلو او ویلو بهیر څنګه وو؟

ملافقیر محمد درویش

څومره چې زما معلومات او مشاهدات دي ، په پیل کې شهیدمسکینیار ترانې ویلې او ځینې کیسټې یې هم ډکولې ،او نشرولې ، ده اشعار خپله لیکل ، خو له ۱۳۶۰ لمریز کال څخه زه دملادر محمد ګوهري صاحب له نوم سره بلد وم ، چې خورا په زړه پورې حماسي ترانې یې لیکلې ، دغه راز محترم مولوي صاحب بدرالدین هم ترانې لیکلې ، ما خپله ددوی اشعار ویل ، په وروستیو کلونو کې له نورو ملګرو لکه خیال بادشاه صادق ، مولوي محمدالدین شاه مخبت ،خلیل الرحمن ،اوملنګ جان منزرخیل اونورو ملګرو سره هم شناخته شوم ، په جلسو کې به مو په شریکه ترانې سره ویلې وروسته د ترانه ویلو بهیر خورا پراخ شو او ډیر نوي نعت خوانان پسې راپیدا شول .

ع ، حکمت

په لومړي ځل کله د سټوډیو مایک ته کیناستئ ، دغه راز په کیسټو یا د راډیو له لارې مو دترانو دنشر بهیر کله پیل کړ ، او څنګه مو دوام ور کړ ؟

ملافقیر محمد درویش

هغه مهال په پیل کې دمجاهدینو داتحاد یوه مشتر که راډیو دصدای افغانستان په نامه وه دې راډیو ګڼې محلي سټوډیو ګانې او راډیویي ستیشنونه لرل ، یعنې په مختلفو سیمو کې یې وړې وړې دستګاوې درلودې ، له دې جملې دوه راډیو ستیشنونه دصدای

افغانستان لخوا محترم حقاني صاحب ته هم ور کول شوي وو، ما په لومړي ځل په میرانشاه او ژوره کې په همدې راډیو ګانو کې ترانې ثبت کړې، بیاغالبا ۶۷ ۱۳ یا ۶۸ کال وو، چې په پېښور کې داوو تنظیمونو داتحاد راډیو ته چې دافغانستان دمجاهدینو په نوم وه ددې راډیو مرکزي سټوډیو ته لاړم، هلته مې یوه ترانه ثبت کړه چې دراډیو دکار کوونکو لخوا ډیر تشویق شوم، او غوښتنه یې رانه وکړه چې بشپړه کیسټ ورته ډکه کړم، په همدې سټوډیو کې مې خپله لومړنۍ بشپړه کیسټ ډکه کړه، داکیسټ بیا خورا مشهوره شوه، تاسو به شاید اوریدلي وي ځینې ترانې مثلا – نجیبه اول دې نه منل دخدای حکمونه په سلګو شولې اوس دې نه قبلیږي سوال زارۍ په ګونډو شولې – یاداچې – په زړونو کې چې وو هغه ارمان کې په ګونډو شو دګرمو اوبو پورې طرح پلان کې په ګونډو شو – دغه راز دا ترانه چې وایي – موږ په قراني زیور خپل وطن زیبا غواړو او داسې نورې ترانې ... دا کیسټ ډیره مشهوره شوه او خلکو یې خوره زیات هر کلی وکړ، له دې وروسته کله چې په ۶۹ ۱۳ لمریز کال کې چې پخوانی راډیو صدای افغانستان منحل شوه، نو دوه راډیو سټیشنونه یې له حقاني صاحب سره پاتې شول حقاني صاحب له همدې دستګاوو نه په استفاده دخوست په ژوره کې د مجاهد غږ په نامه راډیو جوړه کړه، په دې راډیو کې مارسما دنده پیل کړه، چې په ترانو سربیره مو نور مطالب هم وړاندې کول، په دې وخت کې به چې کله چیرې عملیات کیدل نو مجاهدینو به دنورو وړو دستګاوو نه په استفاده محلي خپروني هم کولې، مثلا کله چې په ګردیز عملیات شروع وو هلته موږ له یوې نیم کیلوواټه میډیم دستګاه څخه په استفاده خپروني پیل کړې وې او دمجاهد غږ ملګري به په نوبت ور تلل، په دې ډول مې دمجاهد غږ له لارې ترانې خپرولې ترڅو چې اسلامي انقلاب بري ته ورسیده، داسلامي انقلاب له بري وروسته موږ هغه وکړه چې له ژورې نه راډیو ګردیز ته نقل کړو او هلته یې خپروني پیل کړو، خو دانتقال په مهال د نا همواره لارې له امله راډیو سټیشن دومره خراب شو چې بیا هیڅکله هم جوړ نه شو.




وروسته کله چې په کابل کې تنظیمي جنګونه شروع شول، او دافغانستان ګڼو خیرخوا علماء کرامو دجګړه مارانو ترمنځ کابل ته سفرونه وکړل چې په هغوی کې الحاج مولوي جلال الدین حقاني صاحب هم وو نوموړي په دې لار کې ډیر تکلیفونه وګالل، په دې سفر کې زه هم ورسره ملګری وم په کابل کې مو ډیرې هڅې وکړې خو جګړه مارانو له جګړې لاس نه اخیست دامهال موږ په خپلو سترګو لیدل چې دجهاد ثمره مو دڅو تنو دهوس قرباني کیږي، ډیر بد حالت وو او ټول ملګري له سخت خفګان او باطني کړاو سره مخامخ وو په همدې وختونو کې زما کورني اقتصادي مشکلات هم ډیر شوي وو، نو دسعودي ویزه مې پیدا کړه او غالبا ۱۹۹۳ کال وو چې سعودي ته لاړم، بیا چې کله دطالبانو داسلامي تحریک له پاڅون څخه خبر شوم نو ۱۹۹۶ کې هغه مهال چې طالبان پکتیا او خوست ته رارسیدلي وو او په چار اسیاب باندې جنګونه شروع وو، زه له سعودي عرب نه واپس وطن ته راغلم دسعودي ویزه مې خرابه کړه، او دلته مې په اسلامي تحریک کې خدمت پیل کړ، کندهار ته ولاړم اوالحمدلله په دې وخت کې کابل فتحه شو، نو په کابل کې دارګ دمطبوعاتي دفتر دمسؤل په توګه دنده راوسپارل شوه او ورسره مې دشریعت غږ راډیو له لارې دحماسي ترانو ویل او نشرول هم پیل کړل. (نوربیا)

# د پُل خشتي مسجد

ټولونه: م -

دغه مسجد د کابل د سیند په جنوبي خوا کي د خشتي پله له څنګه تقریباً د یو جریب ځمکي په احاطه کي د لومړۍ هجري پیړۍ په ساختماني موادو جوړ شوی و. د مسجد تهداب لومړی ځل د ډبرو په ټوکرو او خټو او بیا په ریګو (شګو) او اهاکو بنا شوی و، دیوالونه یې په اومو خښتو او بیا په پخو خښتو چي په هغه کي رېګ او اهاک استعمال شوي وو، جوړ شوی په سفیدي او ایراني خټې ښکلی شوی د خونو، کوټو او حجرو د پوښښ او مسطح کولو لپاره یې چي زلزله لږ تاثیر پر وکړي د چنار، عرعر او سفیدار د ونو د لرګیو څخه کار اخیستل شوی و او پر دستکو باندي یې بوریا، وسک، نلان او غوره ګل او کاه ګل لویدلی و.

د دغه مسجد جوړولو پلان د د تیمورشاه دراني د سلطنت په وخت کي د اسلامي معمارۍ په طرز طرح شو او د شاه زمان د پاچاهۍ په دور کي په (۱۲۱۳هـ،ل) کال کي بشپړ شو. په لومړي سر کي دغه مسجد یو پوړیځ جوړ شوی و، چي درې دالانونه، اوه رواقونه او یوویشت ګنبدي یې لرلې، د هرې ګنبدي په منځ کي یوه -یوه دانه لوی فانوس د کابل د حربي پوهنتون دمشیخاني ساخت ځړول شوی و، چي د د دوو خوا د لنګرونو په وسیله پورته او ښکته کېدل. دغو څراغونو په هغه وخت کي مخصوصه ځلا او عظمت درلود او د خاورو تیل به پکي سوځل کېده. د دغې مسجد جامع ګچکاري د هغې زمانې د معمارۍ د شاهکاریو یوه په زړه پورې نمونه وه، صحن یې په عادي تخته سنګونو فرش شوی و او د مسجد د ځمکي مخ داسي صندل کاري شوی و چي د مرمر ډبرو سره یې سیالي کوله.

دغه مسجد د بازار خوا ته یوه لویه دروازه درلوده چي د دغې دروازې پر سر یوه جګه او پراخه اوه مخي ګنبده موجوده وه چي په رواقونو سره ښکلې شوې وه. د ګنبدي لاندي په رواقونو کي به تسبیح جوړونکیو ښکلي تسبیح ګاني او پوپنکان جوړول.

د مسجد آذان خونه د دروازې پر سر واقع وه، چي مرحوم سائین به په ډېر خواږه او لوړ غږ آذان پکي کاوه چي آواز به یې ورڅېر مه ټولو ځایونو ته رسېده. د مسجد دوو طرفو بهر خوا کي یو لړ دکانونه جوړ شوي ول، چي موچیانو ،چای او قند خرڅونکیو، بنجارګانو او سیمسارانو به په کرایه اخستي وو او کرایه یې مسجد ته وقف ګرځول شوې وه.

سراج الملة و الدین امیر حبیب الله به د جمعې په ورځو کي هر کله په دغه مسجد جامع کي له خپلو درباریانو سره لمونځ ادا کاوه او څرنګه چي د کابل

تاریخي او زوړ مسجد و؛ نو ډېر ېږ و بار به پکي وو او د لمانځه ځای به په اسانۍ نشو پکي پیدا کېدلای.

امیر حبیب الله د دغه مشکل د رفع کولو لپاره امر وکړ چي په هر صورت چي امکان موجود وي، د دغې جامع د مسجد صحن دي پراخ کړل شي، د دغه امر په تعمیلولو سره د دغې مسجد جامع جنوبي پلو ته چي د مسجد دباندي وو او هلته خاکروبه او ناپاک شیان راټولیدل، د مسجد دننه وګرځول شو؛ خو ددې سره بیا هم د لمونځ کوونکیو لپاره کافي ځای و نه موندل شو؛ ځو امیر حبیب الله بیا امر وکړ چي پر مسجد باندي دوهم پوړ د لرګو په سقف جوړ کړل شي، د دوهم پوړ معماری یې استاد ولي محمد کندهاري سرته ورسوله.

لومړی چا چي دغه مسجد په غالیو (قالینو) فرش کړ، مرحوم حسین افندي ترک د کابل ګمرک مدیر و او لومړی چا چي د دغه مسجد صحن ته اوبه را وستې مرحوم حاجي غلام حیدر نقشبندي د حاجي غلام نبي زوی په بخارا کي افغاني وکیل التجار و.

په (۱۳۴۹هـ.ل) کال د ثور په دومه اود (۱۹۷۰ع) کال د اپریل په دوه ویشتمه (۲۲) د کابل او د هیواد د شاوخوا قدرمنو علماوو او روحانیونو غونډې او مظاهرې د نوراحمد اعتمادي له حکومت څخه د اعتماد د رایې د اخیستلو او ړنګولو او ناروا دولتي نشراتو د غندلو او مخنیوي په هڅه د (۴۳) ورځو لپاره د دغې مسجد جامع له صحن څخه را پاڅیدلې وې.

استاد محمد ابراهیم خلیل مرحوم په دې هکله داسي لیکي :

"تعمیر این مسجد در سال (۱۳۳۴هـ.ش) شروع گردیده است، این مسجد مبارک که منار آن (۶۲) متر و گنبد سبزش از کرسی هژده متر ارتفاع داشته و گنجایش سه هزار نماز گذار را در یک وقت دارد، تمام ایوان و رواقها طبقهٔ اول و دوم زینه های عریض و وسیع و دهلیزها و دیوارها از سنگ مرمر کار شده و روی گنبد آن از کاشی ابی رنگ تزئین گردیده و یک حصه سقف آن که خارج گنبد است طبق نقشه علیحده برای جلوگیری از آب باران اهن پوش شد چراغ بزرگ قندیل وسط در مسجد در گنبد بلند و مرتفع آن اویزان گردید.

زیرا نصب قندیل مذکور که (۱۶۰۰) کیلوگرام وزن دارد از طرف کمپنی زیمنس در جرمنی ساخته شده، قندیل بزرگ و بیضوی آن حاوی (۳۰۰) گروپ برق به قوهٔ (۵۰۰) تا (۱۵۰۰) ولت میباشد، تعداد اویزها بلوری بوده و شیتهای مقبول آن در زیبایی مسجد افزوده است و ضمناً وسایل نشر الصوت مسجد بسیار اساسی بوده و دارای مرکز گرمی و دستگاه تهویه میباشد سقاخانه (وضو خانه) مسجد جامع پل خشتی مجهز با شبکه ابرسانی و شیردهن ها و تشنابهای متعدد میباشد."

د دغه مسجد یو لوی امام او خطیب میر واعظ نومېد چې آر (اصلي) نوم یې میر احمد آقا (سید احمد آقا) و. د زمان شاه، محمود شاه دراني او شاه شجاع د پاچاهي په وخت کي یې د کابل د پل خشتي په مسجد جامع کي د اسلامي تبلیغ او د مسلمانانو د وحدت بیرغ پورته کړی و او پر چندولو د یرغل کولو او د محمودشاه دراني د پاچاهي په ړنګولو کي یې فعاله برخه درلوده.

میر واعظ صاحب د کابل او د کابل د شاوخوا د اوسیدونکیو د مقتدائیت او روحاني مشرتابه حیثیت درلود. نوای معارک د ده مریدان او پیروان لکونو تنو ته رسوي. هغه وخت چي شاه شجاع له کابل څخه د پېښور لوري ته وخوځېد میرواعظ د مختار الدوله مشیر محمدخان له خوا څخه د کابل د نائب الحکومه په حیث وټاکل شو. نوموړی د پارسي ژبي صوفي او سالک شاعر دی او په (۱۲۲۲هـ.ق) کي په شهادت رسېدلی او د کابل د باراني په کوڅه کي د باباولي د قبر ترڅنګ خاورو ته سپارلی شوی دی.

د شعر نمونه یې :

| | |
|---|---|
| مـن بسـمل نگـاه در چشـمان کیسـتم | مجروح بـه نیش خنجر مژگانکیستم |
| ای سر و خوش خرام ز احوال من مپرس | عاشـق بنـور خـاور تابـان کیسـتم |
| چون ذره در هوائی که من رقص میزنم | مـن سـرمه جـوی ریـگ بیابـان کیسـتم |
| مـدعی مسیح کـه سـر پـیچ میشوی | مـن نـو نهـال گلشـن احسـان کیسـتم |
| خود گنده میشوی تو مکن فکر کنندنم از | مـن سبزه دمیـده زبسـتان کیسـتم |
| ذوالفقـار حیـدر کـردار غـافلی | شمشـیر آبـدار نمایـان کیسـتم |
| تعلـیم، علم و ادب از کـه بشـنوم | شـاگرد طبـع لعـل سـخندان کیسـتم |

جـادارد آنکـه فخـر کنـد بـر شـهان دهـر
(واعظ) تو خود ببین زغلامان کیستم

اخیستنه :

ځلمی، محمد ولي، د کندهار او کابل تاریخي مسجدونه، ۱۳۷۶هـ ل، صحاف نشراتي مؤسسه، کوټه

# دشمن دانا بلندت می کند.بر زمینت می زند نادان دوست

نگارنده: مولوی رضا رخشانی

کسب منافع دنیوی و استثمار افراد با طرح دوستی و صمیمت منافات آشکاری دارد. گاهی خودپرستان بی حقیقت در زمینه معاشرت و دوستی با افراد هدف خاصی را دنبال می کنند؛ آنان همواره در پی یافتن دوستانی هستند که از آنها سودی عاید گردد. مثلا هرگز طرح دوستی با کسانی که دارای احساسات پاک و نیات صادقانه باشند ولی بر دوستی آنها فایده مادی مترتب نباشد نمی ریزند. بر اساس همین برنامه ها تا وقتی پیوندشان با دوستان استوار است که امید جلب منفعت باقی باشد، اما چنانچه از این راه به هدف دلخواه خود دست نیافتند و احساس کردند که چرخ دوستی بر محور هدفشان نمی چرخد یک نوع سردی خاص جای روابط گرم و پرحرارت دوستانه را می گیرد و رشته ارتباط ریاکارانه خود را می گسلند. این چنین افرادی که جز منافع شخصی به چیز دیگری فکر نمی کنند ارزش دوستی و رفاقت را ندارند.

شیخ سعدی- رحمه الله- درباره این نوع دوستان می گوید:

این دغل دوستانه که می بینی مگسانند گرد شیرینی
تا طعامی هست می نوشند همچو زنبور گرد تو جوشند
تا به روزی که ده خراب شود کیسه چون کاسه رباب شود
بار دیگر که بخت باز آید کامرانی ز در فراز آیند
دو غبایی بپز که از چپ و راست در وی افتند چون مگس در ماست
راست گویم سگان بازارند کاستخوان از تو دوست تر دارند

این گونه افراد به سود مادی ناچیزی دوست خود را می فروشند و اسرار دوستی را فاش می کنند و یا در موقع حاجت و نیاز مادی انسان را رها می کنند و به دنبال سودجویی مادی خود می روند.

### گذشت و اغماض از لغزش های دوست

بعضی از افراد به علت فقدان بلوغ اجتماعی و نداشتن رشد لازم همزیستی به قدری حساس و زودرنج هستند و در عالم دوستی کم گذشت و سختگیرند که کوچکترین خلاف انتظاری را نمی بخشند و با دیدن یک غفلت و اشتباه از دوستان، به آسانی تسلیم احساسات خام و سوزان خویش می گردند و دست از تفاهم با آنها می شویند و با کدورت و رنجش خاطر عمیق پیوند مهر و علاقه خود را می برند و حال آن که در زندگی روشنایی و تاریکی، خار و گل، زشت و زیبا همواره در کنار یکدیگر قرار دارند. باید دانست که نبض حیات اجتماعی بر این پایه استوار است که در برابر استفاده از مزایایی چند، ضرورت دارد ناملایمات و خلاف انتظارها را تا حدودی تحمل کند و در عین حال از توقعات بی جا و تعقیب رؤیاهای بیهوده احتراز جوید و هنر زندگی همین است که بتوانیم حتی المقدور حالت انعطاف در برابر توقعات خویش به وجود آوریم. همه چیز را بر اساس تمایلات خویش ارزیابی کردن اشتباه است، ولی بسیارند کسانی که به طور شدیدی احساساتشان یک جانبه سیر می کند و در نهادشان حس خودخواهی و خودپرستی به قدری نیرومند است که واقع بینی را به کلی از دست می دهند و از سوی دیگر خود را نیز شکنجه و عذاب می کنند. در صورتی که واقع بینی و داشتن توقعات معقول و متناسب مایه آرامش درون است.

### حزم و احتیاط در دوستی

دو فرد پاکدل که رفیق صمیمی و محرم یکدیگر شده اند در کمال خلوص و صفا با هم برخورد می کنند. اگر عاقل و مآل اندیش باشند باید از این نکته هرگز غفلت نورزند که پیوند دوستی و رفاقت همیشه و در همه شرایط محکم و پایدار نمی ماند و ممکن است پیش آمدها و حوادثی رشته رفاقت را قطع کند و دوستی آن دو را به دشمنی مبدل سازد. بنابراین رفقای یک دل در ایام دوستی باید همواره از افراط و زیاده روی بپرهیزند. جوانان ساده دلی که در انتخاب دوست پیرو عواطف و احساسات آنی خود هستند و هرگز به فردای دوستی فکر نمی کنند و ارتباط امروز را یک پیوند ثابت و ناگسستنی می پندارند و به قدری در دوستی و یکرنگی افراط می کنند که گویی یک روحند در دو بدن؛ مثل هم لباس می پوشند، بر هر کوی و برزنی یکجا ایستاده اند، با هم از هر دری و سرّی سخن می گویند و هیچ رازی را از رفیق خود پنهان نمی کنند. باید بدانند ضرر این تندروی موقعی آشکار می شود که بر اثر یک پیش آمد نامطلوب با رنجش خاطر از هم قهر می کنند و دوستی آن دو به دشمنی مبدل می گردد. در این موقع است که برای انتقامجویی هر یک راز دیگری را فاش می کند تا بدین وسیله او را مفتضح و رسوا سازد.

حضرت رسول اکرم – صلی الله علیه وسلم – ارشاد می فرمایند: «أحبب حبیبک هونا ما، عسی أن یکون بغیضک یوما ما، و أبغض بغیضک هونا ما، عسی أن یکون حبیبک یوما ما» [ترمذی: 1997]

)در دوستی و دشمنی تندرویی نکنید، زیرا شاید روزی وضع تغییر کند و دوست، دشمن شود، و یا دشمن مورد علاقه تو واقع گردد و باب دوستی با او گشوده شود(.

**کتاب؛ دوستی باارزش**

هنگام فراغت و تنهایی نیز می توان دوستی باارزش برای خود برگزید. این دوست "کتاب" و اندیشیدن در اموری است که سبب رشد و تعالی فکری گردد. از راه دقت در نوشته های بزرگانی که هم اکنون سالهاست که جهان را وداع گفته و در آغوش خاک خفته اند با افکار و دانش و شخصیت واقعی آنها آگاه می شویم و از تعالیم‌شان بهره می گیریم. البته همان گونه که برای احتراز از خطر ناشی از تماس‌های نامتناسب می بایست در انتخاب دوست هوشیار بود، در برگزیدن کتاب نیز باید دقت فراوان مبذول داشت. هر کتابی قابل مطالعه نیست و ارزش صرف وقت را ندارد، زیرا نه تنها از چنین مطالعاتی سودی نمی توان برد بلکه افکار زهرآگینی که در صفحات برخی کتب نقش بسته روان‌های پاک را مسموم می سازد. پس مطالعه کتاب‌های سودمند کاری ارزنده است.

**ثمرات معنوی دوستی مخلصانه**

این گونه افراد در زیر سایه عرش الهی قرار می گیرند. آن حضرت – صلی الله علیه وسلم – می فرمایند: «سبعة یظلهم الله فی ظله یوم لا ظل إلّا ظله ... منهم .... رجلان تحابا فی الله» [بخاری[

)خداوند هفت گروه را زیر سایه اش می گیرد آن روز که سایه ای جز سایه او نیست ..... از آن هفت گروه دو مردی که به خاطر خداوند با یکدیگر دوستی می کنند(.

همه مردم در گرمای قیامت جمع شده اند و حرارت خورشید شدید است؛ عرق، خستگی، انتظار سالیان دراز، اما هفت گروه زیر سایه ایستاده اند نه زیر سایه درخت بلکه سایه عرش خداوند. از آن جمله دو نفری اند که به خاطر خداوند با هم دوست شده اند. پس ای برادر! دوست کسی نیست که شرایط زمانه او را بر سر راهت قرار می دهد، بلکه کسی است که خودت او را انتخاب می کنی چرا که آن حضرت – صلی الله علیه وسلم – می فرمایند: «المرء مع من أحب» [متفق علیه[

**انسان همراه کسی است که دوست می دارد**

هر کس را دوست بداری روز قیامت همراه او خواهی بود. پس به نفست بگو که دوست داری همراه چه کسی باشی؟

دور باش از صحبت اهل فساد کآورد سستی بدین و اعتقاد
چون گل سوری حریف خار شد عاقبت دیدی جز ایش نار شد
تا توانی صحبت نیکان گزین کآب را ناله بود از همنشین

)خواجه انصاری، مجموعه مسائل، ص: 618(

# دامریکا لخوا نړۍ کې دخلکو دانټرنیټې اوټیلفونې اړیکو څارکه پر شخصي ازادۍ بربنډ تیری.. !

رحیمي :...............................

**له استبداد نه دازادو خلکو ژغورل ځما مسؤلیت دی**

**زه نه غواړم په داسي نړۍ کې اوو سېږم چې زما هر قول اوفعل ثبت کېږي ...**

دادامریکا دڅارګري اداري سي ای اې د هغه پخواني تخنیکر څرګندوني دي، چا چې په لومړي وار دامریکا یې حکومت له لوري دانټرنیټ اوټیلفوني څارنې په باب نړۍ ته حیرانونکي پټ معلومات افشا کړل....

دامریکا دڅار ګري اداري (سي ای اې ) دغه پخواني مامور "ایډورډ سنوډن" نومیږي ، نوموړي پهه لومړي ځل دبرتانوي ورځپاڼې ګارډین سره په یوه ځانګړې مرکه کې وویل :چې دامریکا حکومت په پراخه کچه دانټرنیټي اړیکو او دټیلفوني تماسونو څارنه کوي ، دګارډین له قوله :ایډورډو ویل:دامریکا څارګره اداره (سی ای اې) په امریکا اودامریکا څخه بهرون په پراخ لاس دانټرنیټ او اوټلیفون ټول کېدونکي تماسونه تعقیبوي ، دورځپاڼې په راپور څارګري اداري دپریزم(prism) نومي پروګرام له لاري دازادوخلکو ازادۍ شخصي اړیکې ، ویډیوګانې ، انځورونه او بریښنایي لیکونه ګوري ،اوي وشمېر خاص خلك تر نظر لاندې ساتي .هم دارازدامریکا حکومت دچین کمپیوټرونو ته ننوزي او له هغو نه معلومات هیك کوي ،

هغه داهم ویلي چې :په وروستیو کې دامریکا لوړپوړو حکومتي چارواکو له لوري دکانګرس په وړاندې( ددروغجنو تورونو دیوه جال ) په اړه او دهغه په وړاندې کولو مې دامریکا حکومت ددغو کړنو دافشا کولو پریکړه وکړه .

۲۹ کلن ایډورډ سنوډن ویلي :ددې پروګرام دافشا کولو پریکړه ما نړۍ کې دازادو خلکو دژغورنې اودهغوئ دخوندیتوب په موخه کړي! ولې دازادو خلکو ژغورل اوخوندي کول مې مسؤلیت دی ، اونه غواړم چې په یوه داسي ټولنه کې ژوند وکړم چې پکې دغه ډول کارونه کېږي اونه دا راته دزغملو وه چې په یوه داسي نړۍ کې ژوندی پاتې شم په کومه کې چې ځما هر قول اوفعل ریکارډولی شي

دامریکا ترټولو دمنلې اومعتبري ورځپاڼې" واشنګټن پوسټ" له قوله:دامریکا څارګري اداري سی ای اې دانټرنیټ دنهو لویو کمپنیو له سرورونو( servers)دهغو دټولومشتریانو اړوندمعلومات مخامخ اومستقیماً ترلاسه کوي چې په دې نهو کمپنیو کې یوټیوب ، ایپل ، یاهو ، ګوګل ، ټاك ، سکایپ ، مایکرو سافټ اوفیس بك هم راځي ...

کله چې دګارډین له خوا دغه راپورونه اومعلومات په لومړي ځل بهرون ته راغلل دامریکا دننه اوبهرون یې په اړه مختلف غبرګونونه وښودل شول ،ډېرو خلکو ورسره له دې پلوه نږدې اته علاقه

منډې وښوده چې د"وي کي لي کس" څخه وروسته دامريکا په تاريخ کې دوهم لوى انکشاف دى چې دامريکا دملي امنيت مشر "جيمز کلاپر" ومنله چې دامريکا حکومت له انټرنيټي خدمتونو وړاندې کونکو کمپنيو څخه دهغوئ دمشتريانو دخبرو اترو اوليکونو ريکارډونه ترلاسه کوي البته په دې لړ کې امريکايان مستثنى دي يواځې دبهرنيانو معلوماتو ترلاسه کول ددې پاليسي هدف دى.

دسنوډن له لورې دمعلوماتو په افشا کولو اوباما له سخت خجالت سره مخ شو ، هم دا وجه وه چې اوباما دهغه ددې کار په وړاندې پخپل غبرګون ښودوکې وويل: چې ددوئ ترڅرڅه لومړى ترجيح دامريکا خوندې کول دي !دنړۍ دخلکو ايميلونه اوتيلفونونه ثبتول اودهغوکتل دترهګرۍ په ضد ددوئ وسله ده! دنورو امريکايي چارواکو په وينا: که په دغه پروګرام وړاندې عمل کېداى نوهيڅکله به ديوولسم ستمبر پېښه نه وه رامنځته شوي ،خوددې په مقابل کې دنړۍ دحقوق بشر تنظيمونه اوټولني دامريکا دغه عمل غندي يونه ښونکى جنايت يې بولي او دټول بشريت په ازادۍ مستقيم تيري اوياغل بولي ،هم يې دبشري اوښاري ازادۍ داصولو اومقرراتوڅخه سرغړونه کڼي .

دانټرنيټ په لويو کمپنيو کې فيس بک اومايکروسافټ هم اعتراف کړى دى چې ورنه په تيرو شپږو مياشتو کې امريکايانو دنړيوالو مشتريانو په اړه دمعلوماتو ترلاسه کولو لپاره دوئ ته اړيکونه ايښې دي چې په هغو دوئ دقانون له مخې اجرآت کړي.

ښکاره ده چې دبوش په دوره کې منظور شوي قانون له مخې :دانټرنيټ اوتيلفون په ټولو کمپنيو لازم ده چې دامريکا دملي امنيت اداري (سي اى اې )ته به دخپلو مشتريانو په اړه بشپړ معلومات ورسپاري، چې کوم مشتري په کوم وخت کې! له کوم ځايه غږيدلى! اوڅه يې ويلي ...

دخبري راپورونو له مخې :ددغه پرزم( prism)نومې استخباراتي پروګرام ښکار نړۍ کې په ميليونونوخلک دي ، خولومړى درجه ښکار ايرانيان ، دويمه درجه کې عربان ،پاکستانيان او افغانان دي ،اودا هغه هيوادونه دي چې دسي اى اې دهڅو لپاره دمرکز کړيت په شکل غوره شوي له دې وجې نړۍ کې ډېر لوى شمېر خلک خپل انټرنيټي ادرسونه او تيلفوني شمېرې خوندې نه احساسوي ، هم له امله يې په ټوله نړۍ کې دانټرنيټ اوتيلفوني خدمتونو وړاندې کونکې شرکتونه دخلکو لخوا دسختې بې باورۍ ښکار دي

بل پلو پخپله دامريکايانو په روحياتو ددغو انکشافاتو اومعلوماتو افشا کېدو دومره منفي اغيز کړى دى چې دهغوئ لوى شمېر اوس ځانونه اوخپل شخصي اکاونټونه خوندي نه کڼي خو دامريکا حکومتي چارواکي دسي اى اې ددغه کار په کلکه ملاتړ کوي ، کله چې دامريکا دغه منافقت دسي اى اې دپخواني تخنيککر له خوافشا شو په غبرګون کې يې سملاسي دامريکا دکانګرس وياندې "بوهنرلي" ايډورډ سنوډن" دغدار په نوم ياد کړ اودهغه له خوا ترسره شوى عمل يې محکوم کړ ، اودا کار يې دهغه له لورې دخلکو څوندپه وړاندې ګواښ تعبير کړ ،هم يې د"ايډورډ سنوډن" په خلاف يې دتحقيقاتو غږ وکړ

هغه وچې دنوموړي په ضد تحقيقات پيل شول او دواشنګټن په يوه فدرالي محکمه کې تورن وپيژندل شو ، داچې سنوډن دمې په ۲۰ مه نيټه هانګ کانګ ته لاړودى امريکا هڅه کوي چې له هانګ کانګ څخه يې امريکاته بوځي ، البته په وروستيو کې داسې راپورونه رسيدو خپاره کړل چې ايډورډ سنوډن هانګ کانګ کې له هغه هوټل نه بې درکه شوى په کوم چې استوګن و ،هم دامريکاپه فشار برتانوي دولت ددغه هيواد ټولو هوائې شرکتونوته لا وخت په سر خبرداري ورکړ چې دهيڅ يوه شرکت الوتکه دې دسي اى اې دغه پخواني تخنيککر مامور برتانيې ته نه وړ ولي !

ددې راپورد خپريدو وروسته دوړلډ وايډويب(WWW) پنځونکي سرټيم "برنرز" په پرزم پروګرام خپل سخت خفګان اوناراضايت ښودلى دى اوڅرګنده کړي يې ده چې دامريکايي حکومت دغه کار يې دټولوبشري حقونو څخه سرغړونه ګڼلي اوپه سختوټکو کې يې محکوم کړى دى

ښکاره ده چې دپرزم پروګرام دامريکايانو ددوه مخې پاليسي څرګنده نمونه دى ، هغه امريکا چې تل نړۍ کې دبشري حقونو ډنډوره غږوي دنړۍ کې هيوادونه دحقوق بشر په نقض تورنوي

اوځان ته دبشري حقوقو ددفاع علمبردار اومدافع وايي ، په عمل کې دادی پخپله دبشر حقونه په ښکاره تر پښو لاندې کوي نړۍ دخلکو ازادي کوابښي ، دهغوئ په شخصي ژوندانه کې لاسوهنې کوي دا هغو خلکو لپاره چې تل يې دامريکايانو په ډير صفت شوندو پترې نيولي وي دپند اوعبرت ځای دی چې دیوه امريکايي تبع سړي جرئت دامريکا يې منافقت کرغېړنه مجسمه نړۍ ته ښکاره کړه او دامريکا ظالمانه پاليسۍ په ضد يې غبر پورته کړ ښکاره چې دامريکا دنه خلك دامريکا دوحشيانه روش نه نور تنګ شوي که امريکايي چارواکي پوهه اوعقل لري پوهي شي چې داددوئ دپاليسۍ په ضد دخپل کاله دننه دناراضايت لومړی څرك دی په راتلونکي کې شايد نور ځوانان هم ځانونه دغه لار غوره کړي اودامريکا يې حکومت د نه ښونکو جنايتونو په بربنډولو دامريکا دمکر اوفريب له شيطاني څېرې پرده پورته کړي!

## پروژه جدید پنتاگون: عساکر قربانی جنگ کالبد شکافی می شوند

نگرانی در پنتاگون از وضعیت عساکر بازگشته از جنگهای عراق ،افغانستان و دیگر نقاط جهان روبه افزایش است.

آمار افسردگی و اختلالات روانی در میان افسران و سربازان بازنشسته آمریکایی روند صعودی داشته و تعداد قابل توجهی از این افسران و سربازان در سال‌های اخیر دست به خودکشی، و دیگر جرایم خشن زده اند وزارت دفاع آمریکا در تازه‌ترین اظهارات خود اعلام کرده است که یک تیم پزشکی مغز سربازان و افسران کشته شده را مورد مطالعه قرار می‌دهد تا چرایی و چگونگی بروز اختلالات جدی عصبی در این قشر از جامعه را دریابد. به نقل از فاکس نیوز، جاناتان وودسون، معاون وزیر دفاع آمریکا گفت: تیم پزشکی وزارت دفاع آمریکا تمام وسایل و امکانات لازم برای مطالعه مغز افسران کشته شده در جنگ را در اختیار دارد و این کار به منظور حل مشکلات روحی و روانی افسران و سربازان بازنشسته امریکایی انجام می‌شود.

وودسون تاکید کرد: وزارت دفاع امریکا تلاش دارد تا به سربازان و افسران بازنشسته امریکا زندگی تازه‌ای ببخشد. دانیل پریل، رئیس بانک بافت سلول‌های مغزی تیم پزشکی وزارت دفاع آمریکا نیز گفت: ما از این طریق می‌خواهیم بدانیم که کدام عوامل باعث بروز مشکلات روحی و روانی در سربازان و افسران امریکایی شده است.

وی ادامه داد: وزارت دفاع امریکا بعد از چند سال تحقیق موفق به ایجاد یک بانک بافت سلول‌های مغزی شده و مرکز این بانک تحت عنوان «علوم اعصاب و بافت‌های مغزی و احیای مغز پس از حادثه» در ایالت مریلند در نزدیک واشنگتن است.

پریل تصریح کرد: ما بیش از یک دهه است که در جنگ قرار داریم و زمانی که سربازان ما به کشور برمی‌گردند با مشکلات زیاد عصبی مواجه اند.

وی افزود: این مرکز در قدم اول اختلال و مشکلات عصبی شماری از ورزشکاران بوکس و فوتبال امریکا را مورد مطالعه قرار می‌دهد و سپس برای حل مشکلات عصبی سربازان امریکایی به کار می‌رود.

مقام‌های وزارت دفاع امریکا همچنین اعلام کردند: این وزارتخانه برای مطالعه مغز سربازان کشته شده از خانواده آنها اجازه می‌گیرد. منبع: گاردین

# دخپلواکۍ بدره!

**حلیمیار**

زه چې دوصل ښکلې باب د عشق کتاب کې غواړم
بس لکه تږې مسافر چینې سراب کې غواړم

خدایه ! چې ستا لپاره تورو غروکې شپې تېروي
هامسافر طالب مسجد او په محراب کې غواړم

...اې د نایټ کلب دفحاشۍ او عریانۍ داعیانو!
زه مې دخپل وطن پېغلوټې په حجاب کې غواړم

چې مستانه د الا هو په شور کې وځنګېږم
ستاد توحیددترنم تار په رباب کې غواړم

چې له تورتم دغلامیو ځل و بل راووزې
دازادۍ بدره ! تا بیا په آب وتاب کې غواړم

که دې زما غزلې تنده دادب ماته کړه
نو (حلیمیاره) بیا غزل درنه جواب کې غواړم

# غـنـا

د انس ضی الله عنه نه روایت چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرېلي : چې د چا نیت د آخرت طلب وي الله تعالی به د هغه زړه د غنا نه ډک کړی) د زړه تسل او د مخلوق نه بې احتاجي به يې نصیب شي ( او د هغه پریشاني به لرې کړي او ذلیله شوې دنیا به ده ته راځي او د چا چې نیت د دنیا طلب وي نو الله تعالی به د هغه په تندې کې د احتیاج او پریشانی آثار پیدا کړي او حال به يې پریشانه وي) چه د هغه په وجه به ده ته تسلې او خاطر جمع هيڅ نه نصیب کیږي ( او د منډو تړړو سره سره به ده ته دومره قدرې پیداکیږي څومره چې د ده دپاره مخکې لیکل شوې وي) . ترمذی ۲۵۸۳ ،داروميي ۳۶۹۴ او احمد

# اې افغانه!

م. خراساني

په ګرده نړۍ کې افغانستان دا ویاړ په غاړه لري، چې د امپراتورانو هدیره ورته ویله کیږي. د کوم امپراتور د ورکي او ختمیدو وخت چې راشي، نو د افغانستان د نیوني هوس یې په په دماغ کې ځای ونیسي، بظاهر د دې هیواد نیونه زیاته آسانه ښکاري، ولي ساتل او بقا پکښې د سر او د ټولي امپراتوري په بیه تمامیږي. یو عربي شاعر د افغانستان په اړوند وایي: الانسحاب منها انکسار والبقاء فیها انتحار یعني افغانستان داسي هیواد دی، چې وتل تري د شکست او زوال په معنی دی او پاتي کیدل پکښې د ځان وژني سره برابر دي.

یوه زنانه لیکواله مریم ګیلاني وایي د افغانستان مثال د کمپلي دی، د دې له پاره چې یو امپراتور پرې د یخ په موسم کې ځان ګرم کړي، نو دا هیواد ونیسي، خو کله چې هوا ګرمه شي او غواړي دا کمپله له ځان څخه لیري کړي، نو له ځانه یې نشي لري کولای او کمپله داسي پرې را تاو شي، چې بیا یې ساه په ډېر تکلیف پکښې وخیږي.

د دې ټولو ویاړونو او سربښندنو اصلي عامل دا دی، چې د دې هیواد ټول وګړي پاخه مسلمانان او بیا په مسلمانانو کې حنفي مسلک لرونکې دي او د دې ټولو سربیره د دې هیواد بقا او سربښندنه د رسول الله (ص) د احادیثو مصدادق دی، چې د خراسان په اړوند یې فرمایلي دي، چې د مهدي پلویان به وي، په ایلاء (بیت المقدس) به خپلې جنډې دروي، همدا راز قسطنطنیه به همدوی فتح کوي، نو اې افغانه! او اې مسلمانه! که ته دا ټولې کارنامې د ځان او د اسلام ویاړ ګڼې، د سکندر او چنګیز د لښکرو په ختمیدو افتخار کوې، د انګریزانو د امپراتوري ختمیدل د خپل نیکونو ویاړ ګڼې، د روسانو شکست او د هغوی له پنجې څخه د ګڼو هیوادونو آزادیدل خپل جهادي ویاړ ګڼې او د دنیا او آخرت کامیابي یې بولې، ځان د ایلا او قسطنطنیې فاتح ګڼې، نو بیا له ځانه سره لږ فکر وکړه چې په روانه جګړه کې چې یو لوري ته له پنځوسو څخه زیات هیوادونه د صلیب په ننګه او د اسلام په ړنګه راغلي، ته د چا په صف کې یې؟ د مسلمانانو په صف کې د صلیبیانو یا د هغوی د مرستي کونکو په صف کې؟ که ته بیا ځان د مسلمانانو په صف کې بولې نو تا د صلیبیانو د را پرځولو په دې حساس پړاو کې له مجاهدینو سره څه جاني، مالي یا بله مرسته کړې او کنه؟ آیا د همدې صلیبیانو له شکست او تښتېدلو څخه وروسته به هم تاسو دا ویاړ خپل ګڼې او کنه؟ او د قیامت په ورځ کې به د الله (ج) په حضور کې د څه جواب ویلو کوښښ کوئ او کنه؟

